هم ضرردی او د اسلام دپاره هم ټول اسلامي ممالك آزاددي، نو که پښتونستان
آزادشي څه کفر خو نه دی پس له ده ارباب په ارد ویوه وینا کړه؛ چه لنډ
مطلب ئې دادی: موږ دپاکستان سره جنګېدل نه غواړو او نه په دې کښې
موږ کومه ګناه شته خو دوی را باندې بمباری کوی، په جنوبي پښتونستان
کښې چه کومه جنډه رپېږي هغه په دروغو نه ده انجمن وطن په دې لار کښې
ډېر خدمت کړی دی او نن موږ تاسې دخپل حال نه خبرول غواړو.
دا جلسه تقریباً په دوه نیمې بجې ختمه شوه موږ خپل هوټل ته لاړو،
وله کلکتې نه د ډاپس تلو بندوبس شروع شو. فیصله داوشوه چه په ۷ بجې
ه ټیشن ته ځان رسوو، مګر مخکښې له دې نه چه د کلکتې
ه رخصت شو، د کلکتې یوڅو نورې خبرې هم واورئ.
کلکتې ښار دایشیا یو لوی ښار او نږدې څلو یښت لکه نفوس لری، د دې
ا ر د تنظیم دپاره دا واس زره پولیس مقرر دی، وائې چه اوږدوالی ئې هم
٤ میله دی او پلنوالی ئې هم د کلکتې زیات عمارتونه پنځه، شپږ او
وه پوړه لری سړ کونه ئې ټول پاخه دی په ښار کښې د ننه موټرونه لاری
ټرامونه چلېږي، په ټول هند کښې د کلکتې ټرامونه ښکلي نوی او منظم دی
د بجلۍ په واسطه ګرځي او ځای په ځای خلکو ته دریږي ګاډی او سا ئکلونه هم
کښې شته، مګر ځینې ګاډی، په کښې د سړو په واسطه را ښکل کېږي او کوم ناوړه

دهندهغه مسلمان پاچادی، چه دانګریزانو سره ئې سختې جګړې کړې
او په دې لار کښې ئې د شهادت شربت څښلی دی...
په کلکته کښې ډېرې سینما ګانې او تیاترونه دي، تر ټولو مشهوره سین
«لایټ هاوس» نومېږي چه په ټول هند کښې اوله درجه ده. د کلکتې مشه
بازارونه چورنګی، نیومارکیټ او «دهرم تله» دي، نیومارکیټ یو سر
مګر ښکلی او ښایسته بازار دی هر قسم سامان پکښې پیدا کیږي او د ماز یګر
وروسته پکښې ښه ننداره جوړیږي ښکلې ښایسته ښځې، ښه فیشن، پوره صفا
اورنګینۍ هم پکښې زیاته لیدل کیږي.
د کلکتې تر ټولو ښه یادګار د «هاوړه» پل دی، دا پل د ګنګا د پاسه جوړ
جوړشو یدی نیم میل اوږد او ۱۲ فټه پلن دی او درې کروړه روپۍ پر
لګېدلی دی.
په کلکته کښې تقریباً شپږ اوه زره پښتانه اوسیږي، سلیمان خېل پکښ
ډېر دي صافي، مومند او یوسف زي هم پکښې شته محمد نسیم قندهاري
مرادخان زرمله وال، پردل خان یوسفزی، مسافرخان سواتی ګل محمد صا
پکښې تکړه او غښتلي ځوانان دي چه د پښتونستان د کار سره هم پوره مي
او علاقه لري.

دجنوري ۱۳

بل مو نږ د پرو ګرځېدو او خبرو سترې کړې وو، نو تر سهره پورې په ځان
ر نشو چه له کومه ځایه راغلو او کوم ځای ته ورسېدو زمونږ اورګاډی
« کالکا میل » نومېد، درسته شپه په یوه شان لار وهله او د پرخلك ئې
پلو د بو په ځانګو کښې و زنګول سهر نمر خرك مو چه سترګې وغړولې
ر ګاډی د « مغل سرای » په ټېشن (دریدځای) ولاړ ؤ بیا چه روان شوو، پوره
ه بجې » « آله آباد » ته ورسېدو آله آباد د « ګنګا » په غاړه پروت د هند
مشهور ښار او د جواهر لال نهرو د وږ کېنې ځای دی، دا ځای یوه مشهوره
کدیمی لري، چه د « نیا هند » مجله خپروی او نور ئې هم ډېر کتابونه خپاره
ړیدی. په دې ځای کښې د چای څښلو د پاره د اورګاډی « رستوران » ته
غلو، ښه صفا میزونه او چوکۍ پکښې اګېدلې وې، د سپینو جامو
ـمتګاران چه په سپینو پټکو کښې ئې سرې پټۍ او لمبر و نه لګېدلي وو؛
ښته پورته ګرځېدل، په یوه ګوټ کښې د لطافت او نزاکت
ظره هم ښکارېده، که چېرې د ګاډی د ګړز ګروز آواز نه اورېدل کېدی
یا دیوې ولاړې او روانې کوټې فرق کول به مونږ ته مشکل ؤ. ګاډی
کېنټه کښې « ۳۵ » میله لار وهله، او مونږ په مزه او آرام چای څښه،
تول (رستوران) کښې خوږې خبرې او مرکې شروع وې، ستړې ي، ژړه

راته نورخه معلوم نشو، گادی هم یوه شیبه اه خپل وخت نه زیات نه دی پد
پس له دې دډیلی د نزدې کېدو خبرې شروع شوې، یا راڼ په هر که بو وخت د
د نرا کت او ښا یست میرمن لکه گل غوړیدلی ده، دزړو نو ستنې ...
په احترام کښې اوستر گې ئې دغلاغلا کتو نه په پښو نو خو ند ... نه ا خل
دمازیگر هوا وچلېده، دلمر کـکوړی لکه تامبه سورشوی دی، ته به و ا ...
چاداسمان په تناره کښې دسرې تا مبې ټیکلی پورې کړیدی، په همدې پر کې
وخت کې زمزمه کول انسانی عادت دی، زمازمزمه د تور وپه جا مه کښ
را څر گنده شوه او سمد ستی تر ې یوشعر جوړ شو، چه دیارانو دخو شحالی
دپا ره دهند داور گادی دسفر په یاد دلته و لیکلی شو.

وخت ما زیـگر د ی ښکلی منظر دی

ناست یم په ریل کښې خوشر نگ سفر دی

کو رم بید یا ته ، ښکلې صحرا ته

سمسور وطن کښې ښایسته فضا ته

ښه په خیر خیر یم د گـل خندا ته

د هند په ځنډو ز یړ ه تی نمر دی

له قاره سوردی «١» زړه یې تنوردی

سترګي موښکار کړي، پهرستوران دي

بو ګل اندام ته، عالم حیران دي

نه پري پو هیږم، د پري ئي اثر دی

په چو کي ناسته ښکلي ایلاده

د خوند صحبت کا په مشغولاده

زلفي خوندل کا، دا بي پروا ده

په شا کتل ئي آب کوثر دی

په غلا کتل کا، د زړونو وړل کا

د زلفو دام کښي، را ښکېلول کا

په ښنګ ښنګ ګوري، نازونه خپل کا

په مونږ ئي کړي، جادو منتر دی

ناست میوندوال ؤ ورسره سیال ؤ

رمضاني هم په زړه خوشحال ؤ

ارباب صاحب هم تللی په خیال ؤ

دوب په حیرت کښي محمد اکبر دی

تیاره ماښام شوه نوی هنګام شو

د ماښام دراتلو سره ننداره ختمه شوه ؛ موږ خپلو د بوته را
یو تر بله په خوږه مړ که اوخبرو بوخت وو چه « یوولس نیمې » بجې د
ډېسن ته ورسېدو، خان غازی، محمد ولی بابر او نور په ډېسن کښې ز
هر کلی ته ولاړ وو ، ده یلی سره هو ارابا ندې ولګېده ، او
دیخنۍ احساس ئ کړ، ځکه چه د کلکتې هوا په دې ور ځو کښې ک
ملا یمه اونرمه وه - بیا په موټر کښې کښېنا ستو او « سنټرل کو
هوټل ته لاړو - په دې ځای باندې د کلکتې سفر ختم شو .

د جنوری ۱۴ :

## د فرید آباد جلسه

دجنوری په ۱٤ ، غرمه ۱۲ بجې په ګړندی موټر کښې لدښاغلی انور
ګران تاج محمد خان او خان غازی سره فرید آباد ته لاړو . فرید
ده یلی د نمر خاته خوا په ۱۸ میلی کښې یو ځای دی، چه د صو به س
شخه تللی پناه ګیر په کښې اوسېږی .

د فرید آباد لسو ی وا ړه زمو نږ مخې ته را وتلی وو ، د
ده ول پېشان ډول پکښې وهل کېده ، په دې خلکو د پښتو
د نمایند ګانو راتګ ډېر خوښی دا ختر ورځ وه ، د هر یو تن په تنده ی

د کې خوندورې نارې رار سېږی ، مونږ په مـو قـر کښې ، د
ښکلې خـو ند نـا کې منظرې ننداره کو و ، دا خلك اکثر خد
خدمتګار وواوسرې جامې ئې اغوستې وې ، په لار کې دفقیرا یپـی او فـ
افغان په نامه دوه لویې دروازې ښکـاره شوې ، په دې د وا زودجلسې ځ
ته لاړو ، دجلسې میدان خو لې تر خولې له خلکو نه ډك دی ، انږ سا
پس د جلسې کـار روائی شر و ع شوه ، اول اول خمو ش سر حدی د ه
وار کـانګرس اخبار مدیر د پښتونستان او افغانستان د نمایند ګانو په هر ک
کښې جلاجلا سپاسنامې و ویلې .
دا سپاسنا مې چه په ډېر ښکلی خط لیکلې شوې وې ، په ښیښو کښې
ښاغلی سیال ته ور کړ شوې ، ور پسې ، نهال سنګهه خپل پښتو نظم ووا
بیا « سو کهه رام » هم پښتو نظم واوراوه چه یو بیت ئې دادی :
په حر مت دحضرت محمد مصطفی شادمان په جهان هر افغان کړې
تر ده وروسته میراجان سیال ودریداو په درنده لهجه ئې په پښتو ژ به
خوزه وینا و کړه ده دفرید آباد له پناه ګیرو سره خوا خو زی او همدر
ښکاره کـړه ، بیائې د آزادو سرحدو نو په شورا ګـانو او نورو کـارو نو
رنها و اچوله او د پښتونستان د جوړ ولو په لار کښی ئې د سختې قربا
ضر ورت څر ګـند کړ ، له ده نه وروسته ارباب په ارد و ژبه د خپلو احسا سا تـ

کړی دی، دغه شان دهند دآزادۍ په لار کښې دافغانستان کومکو نـ
بیان شول ، په آخر کښې دې خبرې ته اشاره وشوه، چه دپښتونستان جو
په خپله دپښتنو کار دی، افـغانستان بـواخې په اخلاقی تو که دخپلو ور
دآزادۍ دآواز سره ملگرتیا او ددوی سره جایز کومک کوی ، اه
کښله پکار دی چه دهرځای پښتانه په دې تحریك کښې عملا بر خه واخ
جلسه دخموش سر حدی په آخری خبر و ختمه شوه، او بیا ناخبره دتمبو
پـه منځ کښې یوې خیمې ته بو تللی شو، هلته دچای او مېوې بندوبس نـ
ؤ، ښځې اوماشومان زمونږ لیدو ته له خپلو تمبوانو څخه راوو تل ، د
تول په پښتو غږېدل، چا دوزیرو، چا دختکو او چا د یوسف زو په لهجه خبـ
کولې، وړو هلکانو په غټ آواز په یوره زورتیا ویل « ستړی مشی
مـگـر زمـونـږ زړو نـه ددوی پـه خـوا ری او سخـت ژو
دېـرودردېدل، مونـږ بیـا ددوی یو پیرولیـد، په زړه خپمه کـښې دپښ
په خبرد « چر گـی » خواته ناست ؤ، دوزیرو په لهجه ئې خبر ې کولې
دفقیرصاحب ایپی د نامه اود هغه داستا ځی رمضانی په ایدوډ بر تازه
په ستر گو کښې ئې او ښکې و گر ځېدې او دزړه په جوش ئې و وې
دپاکستان هم داسې و کړم او دهند وستان هم داسې داسې و کـ
مونږ دپاره دواړه یو دی، مونږ خو تل شپه او ورځ داسې ...

په هند کښې ځــای په ځای خپاره کړی ، مګر دوی په هیڅ شا
دي‌خبري ته غاړه نه‌ږدی ،دوی‌وائی مونږ ټول په یوځای ژوندون کو
غواړو ، مونږ پښتانه یو ،زمونږ ګډون دنورو هند وستانو سره مشک
از سخت دی، دغه ددوی‌دوړو کی اولوی نراو ښځی جذبه ده .

## دډیلی لویه‌جرګه

خلور بجی‌په (ګـاندی ګراونډ) کښې دپښتون جرګې له‌خواد یوې‌لو یې
جلسې انتظام‌شوی‌ؤ، نږدې‌څلور بجې‌مو دغه‌ځای ته‌ځان ورساوه. دسترې‌یا انداز
نه‌وه،مګر دپښتو نستان‌دپاره‌دا ټول‌ربړو نه‌ګـالل زمونږ دخوشحالۍ سبب
دجلسې‌ځای‌دخپل وخت نه‌لږ ورو ستــه تیار شو اوپه‌دې‌سبب جلسه‌څلور نیمې
بجې شرو ع شوه، اول خان غا زی کـابلی دپښتون جرګې‌سکرتر دجرګې
له‌خواد پښتو نستان او افغا نستان نما یندګـانو ته‌یوه سپاسنامه ورا ندې کړه
چه‌مطلب ئې دادی" زه‌نن‌دپښتون جرګې دسکرټر په‌حیث دپښتو نستان " هغوښا
نما یند ګانو ته هر کـلی وایم،چه‌دوی‌په آزاد پښتونستان تیرا،وزیرستان
ومندواوبلوچستان کښې‌دسر بازی‌په کوشش کښې‌بوخت دی،دپښتنو اه‌زیار
و کوښښ نه ثابتیږی،چه‌دوی ٨٥ کا له‌اه‌انګریزانو سره‌مقا بله کړې دی
اوس هم‌دخپل وطن دآزادۍ‌د پاره سر په‌تلی‌ولاړ دی، مونږ پوهیږو چه

پس له هغه سیال میکروفون ته ودرېد، او د پښتونستان په حقیقت ئې پوره
نیا واچوله، سیال دا خبره خلکو ته وښوده چه پښتونستان یو وهمي او فرضي
ی نه دی، بلکه دا په تاریخي جغرافیائي سندونو ټینګ یو منلی حقیقت دی،
ه وویل چه مونږ د پښتونستان د جوړولو د پاره کلکه او پخه اراده کړې ده.
یه دې لار کښې هرڅه چه را ته پېښېږي، سینې مو ورته ډال کړې دي.
ا کستان که په مونږ هرڅومره ظلم کوي مونږ ورته اطف او خو نداخلو، ځکه مونږ
ر سره عادت شوي یو، تر دې وروسته ارباب د بلوچستان د انجمن وطن کارونه
هندیه آزادۍ کښې د پښتنو قربانۍ بیان کړې، ده وویل چه مونږ د پاکستان
ر مجنګ نه غواړو، مونږ د سولې او امن طرفدار یو، خو څه وکړو چه پاکستان
په مونږ ظلم او زیاتي کوي او زمونږ حق او موجودیت نه مني، له دې کبله مونږ
مجبور شو چه یو وخت ټوپك را واخلو او د خان د ساتنې د پاره جګړه وکړو
پا کستان په (توبه) کښې په مونږ یرغل وکړ، خو داسې شکست ئې وخو
چه یاد به ئې لري.
نیا ظهورالدین خان د کاغذ اله مخه په اردو یو څو خبرې وکړې او په آزاد
رحدو نوئې د پاکستان تېرې او تجاوزونه یو یو بیان کړل. ده وویل چه د پاکستان
لو تکو یې له اعلانه زمونږ په کورونو، ښځو ماشومانو ګولۍ اچوی



دډیلی په امپرین هوټل کي دپښتونستان مطبوعاتی هیئت اودافغانستان
مطبوعاتی هیئت چه ښاغلی دوکتور نجیب الله هم پکښي لیدل کېږي.



دډيلى دپښتنو په لويه جرګه کښې ښاغلى رشتين دوينا په حال کښې.

زه که‌څه‌هم خبرو کولو ته تیار نه‌وم، خو له نا کامه یا ځینو او په پښتو می
یو څو خبرې و کړې چه خان غازی یې په اردو ترجمه کوله.

ماوویل: چه افغانستان د برش کاله پخوا خپله آزادی اخیستې
د آزادۍ قدر ور ته معلوم دی، نو ځکه خپله وظیفه ګڼي چه د پښتونستانی ور
او چلنداو خپلوس کښې ملګرتیاو کړي افغانستان د ملګرتیا او کو
د زمانې د غوښتنې سره هم د آزادۍ په لار سره سم دا میر دوست محمد خان
وخت نه کړی دی، د ډېرو خبرو تاریخ د خلکو په سینو کښې پروت دی،
دانګریزانو مقابله په دنیا کښې د جرمنی غوندی حکومت و نکړی ش
نو افغانستان مجبور ؤ چه یواځې د پردې تر شا د پښتنو کومك و کړ
البته اوس چه د ښکاره کوشش موقع او وخت را غلی دی، نو
ښکاره هم د پښتنو د خپلواکۍ طرفداري کوی او هر قسم اخلاقی مر س
ته ولاړ دی، سربېره په وروروی او دوینې په ګډون، د ګاوندیتوب حق
دا دی چه دیو بل امداد به کوی، په نن وخت کښې که د پښتنو سره هر چا څه و
هغه به پښتانه هېڅکله له یادو ځخه نه و باسي، او تل به ور ته د قدر په ستر
ګوری، په آخر کښې ما داورو سته شعر هم ولوست

پښتنو عزم دی نن کړی خپل وطن جوړ وی

له پښتو نخوا نه بیا بسته ښکلی ګلشن جوړ وی

پښتانه نن دی راټول شوی تدبیرونه کوی
دغه ئې فرض دی یو تربل دژوند فکرونه کوی
په پاخه عزم پاك نیت باندې کارونه کوی
که وخت ئې راشی په دښمن به غور ځنګونه کوی
نن دمیرویس اواحمد شاروحونه غونډ دی سره
لودی بهلول سوری شیرشاه هم دواړه پنډ دی سره
نن دپښتون دجګړې و دوبار خوبونه وینم
محکم له غرونو په هر ځای ددوی عزمونه وینم
تل قربانۍ لره تیار ددوی سرونه وینم
پښتونستان په نوم تازه ددوی رنګونه وینم
حق دچا نه خوری خو بل چاته هم خپل حق نه پرېږدی
غیرو غماز ته خپله خاوره یو څپېك نه پسر ېږدی
احوال چه ګورو په دنیا نوی دوران راغلی
نن د پښتون دآزادۍ وخت او زمان راغلی
د دوی دپاره یوځل بیا د ننګ میدان راغلی
دسر بازۍ اوقربانۍ بل امتحان راغلی

یو تقریرو کړ او په دې خبرې ئې زور واچاوه چه پاکستان وایې د پښتنو محبو
لیډر خان عبدالغفارخان په جیل کښې اچولی دی، چه صحت ئې ورځ په ور
خرابیږی. که پاکستان اسلامی او یا قانونی حکومت وی، نو مونږ سره دې په دی
باره کښې یا شرع او یا قانون وکړ، مونږ پاکستان ته وایو چه که رښتیا پښتا
یه دوی خوښ وی نو زمونږ سره دې په پښتونستان رای گیری وکړی و چه دې یو
کار ته هم غاړه نه ږدی نو بیا پاکستان په څه خان اسلامی او جمهوری حکومت بو
ه دانه وایم چه پاکستانی ابجنټیان دې زمونږ مخالفت نه کوی کوې، دې خو
ایماندارۍ سره، دروغ دې نه وائی او بې ایمانی دې نه کوی. دا جلسه مابنا
وه بجې ختمه شوه او مونږ ستړی ستومانه خپل هوټل ته لاړو.

دجنوری ۱۵:

## دخدائی خدمتگارو جلسه

دجنوری په ۱۵ ماسپښین دوه بجې دخدائی خدمتگارو له خوا د یلی دجا مع
سجد په خوا کښې دیوې لویې جلسې بندوبس شوی ؤ. مونږ په دوه بجې دجلسې
ځای ته راغلو، دپښتونستان دبیرغ لهاو چتولو نه وروسته د گلونو هار و نه
ولو نمایندگانو په غاړو کښې واچولی شول، ددې جلسې منتظم بناغلی
اج محمدخان ؤ دی یو تعلیم یافته ځوان او دپېښور دغلام محمد گاماوروردی
کاما اوس دپښتونستان دتحریك په گناه د پاکستان په جیل کښې پروت دی په

ملاپسنګهه په‌خپل تقریر کښې وویل د پښتو نستان پښتنو چه زمونږ
حفاظت دپاره کومې قربانۍ کړې دی مونږ په‌هغو فخر کوو، که‌پښتو نستان
ور او فخر افغان آ زادشو نو دخدای په‌دغه‌مخامخ کور «جماعت» قسم‌خورم
ه‌یوساعت به‌دلته پا تې نشو .بخشی‌فقیر چند وویل: دآزاد پښتو نستان
اینده‌ګا نو ته دعقیدت ګلو نه وړ اندی کوو، مونږ دپښتو نستا ن سره
همدر دی‌،غېز او چتوو ل او دهندحکومت ته‌ه پکار دی چه‌دپښتو نستان په‌مسئله
ښې خپل آ واز پور ته کړی .
بیاسیال، ار باب او ظهور الدین خان ویناګانی و کړی او پخوانی
طلبو نه ئې بیاوویل داجلسه په‌څلور بجې ختمه‌شوه .



دډیلی پوهنتون

زیګر په پنځه بجې دتاج محمدخان او خان غازی په ملګر تیا دډیلی
یو نیو رسټی په بلنه هغلته لاړو، د یونیو رسټۍ طا لب ا لعلما ن
پروفیسر ان ټو لغونډه‌شوی وو .
نو مړی میر تاج محمد خان چه‌یو وخت ددې یو نیو رسټۍ طالب العلم ؤ،
پښتو نستان او افغا نستان دنما ینده ګا نو معرفی و کړه او بیادطالب العلما نو له
راد څلمیا نو‌مشر ګډا نو مېلمنو ته دهر کلی په منځ کښې داوروسته
بېړي و کړې :

دوی دهند د آزادی سره دپر کومك کړی دی نو مونږ بايد ددوی سره کومك
و کړو . پښتونستان اوس يوحقيقت دی، مونږ دپښتونستان نمايندگان
وايو چه مونږ ستاسې د آزادی ملگری يو، تاسې يقين وکړیء چه دهند خلك
ستاسې سره همدرد دی لری. تر ده وروسته ميوندوال په انگريزی وينا وکړه
بيا ارباب په اردو او سيال په پښتوخبرې وکړې او دپښتونستان دمسئلې
په حقيقت ئې ديو نيورستی طالب العلمان وپوهول. شاگردانو دفقيرايپی دحالاتو
اوريدلو، سره دلچسپی درلودله، مگر دوخت دانږ و الی په وجه ظهورالدين
خان ته موقع پيدا نشوه چه په دغه باب کښې څه ووايی .
داخبره هم دياد ساتلو ده چه د ې تړ لنې ته يوانگريز پر و فيسر هم
راغوښتل شوی ؤ مگر کوم وخت چه دپښتونستان په باره کښې تقريرو نه
شروع شول، نو ده د پاکستان دخوشحالی دپاره مجلس پرېښوداوولاړ .
دمجلس دختمېدو نه پس دشاگردانو د شپې اوسېدو ځای ته ور غلو . داځای
ډېر لوی او په ښه ډول جوړ شوی دی، وائې چه په ايشيا کښې دريمه درجه
(هاسټل) گڼل کېږی، په دې هاسټل کښې سل تنه هلکان اوسېدی شی
او له هر يو تن نه دمياشتې درې نيم سوه روپی فيس اخيستل کېږ ی .

جنوری ۱۶ :

داخيستلو دپاره غنيمت وگڼله او آزادانه په خپله خوښه وگرځېد
ماسپښين په ۲ بجې دامريکې دپرس نماينده مستر « فاپ سينگر » دخپلو روښتو
دپاره زمونږ ليدوته راغی، ده عجيبې او غريبې پوښتنې کړلې او غ
غټ سوالونه ئې داول:

۱ـ دپښتونستان تحريك هندوستان چلوی که افغانستان ؟ پښتونستا
دنيپال سره پيوستون لري که نه؟ دپښتونستان اقتصاديات څنگه دي؟ مو
اوربدلی دی چه پښتانه تنظيم اوحکومت نه مني، نوبيا تاسې څنگه حکومت
جوړولای شیء ؟ تاسې چه دومره موده آزادیء نوولې موترقي نه ده کړ
دده ځوابونه مو په شريکه وويل:

پښتونستان تحريك په خپله دپښتنو تحريك دی، نه ئې افغانستان چلوی او
ور سره هندوستان غرض لري البته افغانستان ورسره اخلاقي امداد کوی
پښتونستان دنيپال سره هيڅ ارتباط نه لري، په منځ کښې ئې دهماليې لو
غرونه دی. پښتونستان پوره اقتصادي ذخيرې لري، مگر پښتنو ته دهغو ديـ
اچولو موقع په لاس نه ده ورغلې، که دپښتونستان حکومت جوړ ش
نو بيا دخپل پيدا وارنه کافي فايده اخيستلا شي.

پښتانه په پوره اندازه دتنظيم طرفداردي، دوی دخپل کلي ديو وړو ک
ملك خيری منلو ته هم تيار دی، داخل...

نه دی، بلکه ټول ئې ټوټې کړی دی او دیوبل نه ئې جدا او بېل
سا تلی دی، فلپ سینګر په آخر کښې و ویل چه مونږ اوربد لی دی، چ
پښتانه شاړ او غیر مهذب خلك دی تا سې خودېر مهذب او خوا ږ
خلك ئی.

مونږ وویل دا هم دپښتنو ددښمنانو پروپا ګنډه دی دا ئما یمده په آخ
کښې پوره خوشحاله شو او بیالاړ.

د جنوری ۱۷:

دمرتب پروګرام سره سم زما ملګری میوندوال، سیال رمضانی او ارباب
ګمیځ په ۸ بجې داحمد آباد په لور وخوځېدل اوزه دخپل علاج دپاره
په ډیلی کښې پاتی شوم، له دې تاریخ نه پس زه یواځې شوم، نوځکه زم
ورو ستنی لیدنې کتنې یواځې په ماپورې اړه لری.

دجنوری ۱۹:

د کشوری لال سره دستر ګو ډا کټر «مترا داس» ته لاړ
«مترا داس» دهند د تقسیم نه وروسته له لاهور نه ډیلی ته را غلی
دی او یوه بنګله ورته رسېدلې ده دی اوس سپین
ږیری شوی دی، خوسره ددې هم د مریضانو په کتنه پسې سر ګردا ن
ګرځي، ده زما سترګې وکتلې او د کتلو نه وروسته ئې وویل چه نظر کمزوری

چشمو دپاره‌ورغلو، ددوو جوړو چشمو ئې «٤٥» کلـدار ې وا خیستې
کوم وخت‌چه ما چشمې په ستر ګو کړې، نوخیال مې‌و کړچه نوې ستر ګې
ندای را کړې، ځکه چه دخیزو نو اصلی رنـګ را ته ښکاره شو .

دجنوری ۲۰ :

*د کشمیر هاو س*

هرلس بجې‌مې‌دمیر تاج محمدسره د « کشمیر هاوس» دلیدو شوق و کړ ؛
کشمیر هاوس‌په‌نوی ډیلی کښې د« پرتهوی راج »روډ په خوا کښې یو ښکلی
ا ی دی، داهـا وس د کـشـمیر دآ ر ت اوصنعت یـو غوره ننداړتون
ی،د کشمیر په نامه کښې‌چه څومره خوزوالی اولطف‌موجود د ی ، هغه
لته‌په‌مجسم صو رت و لیدی‌شو،اود کشمیردطبیعی ښا یست، لطافت او نفاست
نداره‌مو په‌ښه‌شان و کړه، ددې ننداړ تون د ښکلواوپا کیزه شیانو په لیدو
مو نږ په نظر کښې د کشمیر نوم نو ر هم زیات‌قدرمن‌او درو ند شو، په‌دې‌هاوس
کښې دجلاجلاصنعتو نوځا نله‌ځا نله کو ټې‌وې، په‌یوه‌لو یه‌خو نه کښې د چارمغز
لـر ګو نه جوړ شوی سامان لکه چو کی، مېز، ګلا سو نه، کـاسې، مجمې
رداسې نورشیان پرا ته وو، په باله خو نه کښې د سپینو زرو جوړ کـړ ی
بنی لـکه چا ینك، پتنوس، ګلاس، پیالې او نورشیان وو، په‌بل‌ځای کښې

(۱)

بسته، گلداری او ډېلي وي، مگر دافغانستان قالینو ته نه رسېدي، سر بېره
ردي کشمیري شالونه، ورېښمېني ټوټي، د کټ ځادرونه، او نورې ټوټې هم
ښي موجودې وې، د کشمیر هاوس دسامان بنگلاو ښایست خوډېر زیات ؤ
کر قیمتونه ئې لېز اوچت وو، او داسې معلومېده چه دا په مااد ا ر و
لکو باندې ددې دپاره خرڅوي چه پیسې پرې ترې گوټه کړي.
په ډېلي کښې د کشمیري مالونو څلور پنځه نور لوي لوي دکانونه هم شته،
ا انتظام ټول د کشمیر حکومت کړی دی، په شمله، بمبیه
لکته کښې هم دغسې نندارتونونه جوړشوي دي. د کشمیر دیوډو کې
است دنوم اوچتوالو، صنعت زیاتولو، اقتصاد یاتو د ښه کو لو د پار ه
د کشمیر حکومت څومره کار کړی دی یائې کوي، حقیقتاً چه ډ ډېرې
اینې وړدی، او ډېرو خلکو له ترې عبرت اخیستل پکاردي.
خدای شته چه زه خود کشمیر دومره پرمخ تگ او صنعتي ترقۍ حیران کړم
افسوس مې وکړ چه پښتانه سره له دومره قوته او ډېر ښته له کشمیر نه
وروسته پاتې دي.

﴿دبین المللي انجنیرۍ نندارتون﴾

دجنوري ۲۱.

ازیگرشپېز بجې په ډیلي کښې دبین المللي انجنیرۍ ننداریتون ته لاړو،

احاط له تولو صوبو مخکښې ؤ ، دبند ونو نهرونو وپستلو، زراعتی چارو
کار خانو اونورو ثیزونو، نقشي پکښې وپستل شوي وه، اودهندیه‌صنعت
ترقی ئې پوره شهادت‌ور کاوه ، په‌دې ننداړتون کښې فرانس، سویډن
جرمنی ، انګلند، امریکې، بلجیم او نوردپرو ملکونو دخپلو کار یګرو
نمونې ښودلې وې ، د کر، کرندوې لوی‌لوی تر کټورونه ولاړوو، مو
نژدې تر «٩» بجوو ګرځېدو، مګر تړل ننداړتون مو پوره و نه کتی شو
دا سې معلومېده، چه هند د تخنیك او صنعت په برخه کښې کافی ترقی کړې
او په دې لار کښې اوس هم ډېر کوشش کوی ، د کاریګر او بېکار
و لاړ او روان په منځ کښې ډېر فرق دی ، پـه منځنۍ ایشیا کښې
د پر ملکونه په ځای‌ولاړ څه‌چه، په‌وروسته‌روان دې‌همدغه‌وجه‌ده‌چه
په ایشا کښې بو اځې دهندوستان نوم په تواله نړی کښې یا د یږي
او پوره بین المللی شهرت ئې کټلی‌دی .

دپرتاب و رڅیا نه

د جنوری ٢٥ :

سهر لس بجې دخان غازی کابلی سره د «پرتاب» د ورڅیا ت
د وفتر تـه لاړم د «پر تاب » ورڅپا نه په‌ار دو ژبه کښې له د

(٣)

په کاروبار لګیاوو ځکه چه د هند د جمهوریت دوړخې یعنې د جنورۍ
٢٦ – نېټې ګڼه ئې تیاروله. ما ته ئې وویل د ډېر افسوس ګوره چه په داسې
ښتې وخت کښې راغلی یې ماورته وویل. زما آرزو هم داوه چه تاسې
کار په وخت کښې په کاراو فعالیت بوخت وو ینم او د دې نه زه پوره خوښ او خلم
د خبر و په منځ کښې معلومه شوه چه د «پرتاب» دوړځپا نې ټول
کاریګر سل تنه دې او اوه تنه ئې د سرمقالو مدیران دی ـ دا خبره
ې چه واورېده ـ نو خپل اخبار «هېواد» را یاد شو.
ه چلوونکی ئې یو تن دی او ټول ټال یکښې درې تنه کار کوي او خبره
ا نه بله خوا لاړه ـ د پرتاب په ورځپانه کښې د کاپي نویسۍ د پر کاتبان
کار کوي ـ دا اته پانېیزه ورځپانه د دوی د ګوتو د حرکت په برکت هر سهار
نشر میدان ته راوځي ـ د دې روزنامې د کار کوونکو د کار ځای خود ډېر تنګ
ګر زه و نه ئې تنګ نه وو، او په ډېر شوق او مینه په خپلو کار و نو
ګیاوو.

د پرتاب ورځپانه د پښتونستان د مسایلو سره علاقه ښکاره کوي او په دې
ره کښې خپرونې هم کوي.

( د هند د خپلواکۍ جشن )

(٤)

د « انډیا ګېټ » له میدان نه یوځی اسم ګذشت شروع شو او مـو نږ ټ
په « کرزن روډ » کښې د تېرېدو ننداره کوله ، ښځې او نر واړه او غ
د ودانیو په سر ، دډېوالونو د پاسه ، د ونو په ښاخونو ، د سړک په غا ړ
ننداري ته را وتلي وو ، دډېلي د اټلس لـکو خلـکو نه به ضرور دوه لـک
خودې سیل ته راغلي وو ؛

په یـوځې تېرېـدو کښې اول ټا نـکو نه ، موټرو نـه آسمان‌خوا
اود رانه تو پـو نه تېر شول ، ټول بالـکل نو ی بر ښېدل ، په هـر ټا ن
بـا نـدې بېـل بېـل نـوم لیـکـلـی ښکـا رېده ، یـه یـو ه بـهش
په بـل ئـې « ابـراهیـم » او پـه بـل ئـې « اشـو کـا » لیـکـلی
ـه درنـې وسلې نـه وروسته داسونو او اوښـا نـو رسـالـه تېره شو
داوښانو رساله دجیپور اوجلسمیر ، په برخه کښې د پاکستان په سرحد پر ته
ځکه چه دغه وطن ټول شګلن دی او بې له اوښانو یکښې بل څه کار نشي کولا
وروسته د ځمکـې ، سمندری ، هـوائی فـوځو نـو ، ټولـګی پـه منظم صو ر
تېرېدل ، دوی په وجود روغ او په بدن قوی وو ، نـوې وسله او نـو
لباس ئې په غاړه ؤ ، دلاسوا و پښوغو وځېده ئې سم او منظم وو ، زمونږ په خوا کښ
په هندوستاني سپو ی غږېدو ، چه دا دوه وسوه کـاله ...

(۵)

دنیا تر ټولو لوی ښناور «هاتیان» د هندد راجگانو درواياتو سره‌سم
ـکه‌ناوي په‌بنارسو، زرینو ټوټو سینگار شوی ؤو، په‌څرمني کښې ئې یو. گوتـ
ځـای لغړ نه‌ؤ پاتې‌شوی، دشادیاسه ئې دښکلي پالنگ په خوا کښې چو کئ
ېرتې وې، وپه منځ کښې ئې یومصنوعی راجادخپل خاص شکل‌وشباهت‌سر
ناستؤ، دهاتیانو مخکښې اووروسته، بیرغوالا او نورسپاياهیان‌داحترا
په غرض روان و. وريسې د موټرو نواو ټانکو نودپاسه‌جوړې‌شوې اوبې لوبې
ښکلې او کلاگانې هم‌په تماشه کښې تېرې‌شوې، په‌دې‌ښکلو کښې دهندزا
روايتونه، لرغونې افسانې او قصې مجسمې ښکار پدې، د راجگانو اورانیـ
دربارونه. د هغه وخت مخصوص سینگارونه. د عیش اوعشرت محتلو نه
د ساز او سرود مجلسونه د ښـاپیریو جینکو نـاچونه او نورعجیب عجیـ
شکلونـه ښکـار پدل، د هرې زمـانـې لبـاس، تهذیب. د رسم و روا
په جلا جلا صورت ښودل شوی ؤ. په دې مصنوعی بنگلو او کلاگانو کښې
در انـا پرتاب سیواجی. رنجیت‌سنگه. اکبر. سیتا رام. د جانسی رانـې
رامچندرجی او نورو مصنوعی څېرې‌په بېل بېل رنگ لـه‌ورا په‌بر ښېبدې
په آخر کښې گاندهی جی او وريسې دامن ښکلې پې مخې‌پرښتې‌تېرې‌شو

(٦)

دې زبر دستې تماشې نیمګړتیا بېپوره شوې وای '

آوازه وه ' چه د هند جمهور رئیس (اولس وا کمن) راجندر پرشاد به

دخلکو دوړاندې تېر یږي، مګر تر آخره ئې څه پته معلومه نشوه او دا پو

دود نېږدې یو بجه پای ته ورسېد .

دجنوری ۲۷، ۲۸، ۲۹ :

په دې ورځو کښې بې د ګرځېدو را ګرځېدو نه ' بل څه مهمه خبره پېښه نشو

په ۲۹ نېټه په بازار کښې د یو نیم څیز د اخیستو د پاره و ګرځېد

ګرځېد او قلم مې ضرور پکار ؤ خو چه بیه مو کړل ' داخیستو نه وو ' لیکن سره د

هم ځکه چه ما ګرځېد نه درلوده ' او له کابل نه په دې امېدو م چه په

کښې به دلاس ګرځېد اخلم ' نو مجبور شوم یو « وینټن » ساعت مې په « ..

کلداري واخیست ' یو قلم او یو نیم بل شی ، بیا دعینکو د کان ته ورغ

د کان والا چه زما په ستر ګو ستر ګی ولیدې ' وئې ویل چه داعینکې

له دکان څخه اخیستل شوي دي ' مو نږ ترې دقیمت پوښتنه و کړه ' وئې و

چه په « ١٤ » کلداري یوه جوړه تمامه شوې ده ' ما ورته وویل چه دا ک

« متراداس » خو زمو نږ نه په دوو جوړو چشمو « ٤٥ » کلداري و اخیس

(٧)

رمو کښې ئې دستر ګو سو زښت اوسر دردې پېښبوله ، نو په دې وجه مو ښز
غوښتل چه د کړ و پس رنګ داری ښيښې په بل فريم کښې و لګو و
و په يو غوره جرمنی فريم کښې ئې راته نوې ښيښې ولګولې او (٤٥) کلداری
و نورې هم ور کړې ــ داخو دستر ګو دډا کټر قصه وه! اوس يوه بله قصه
اوریء ــ زه دجنوری په (٦) نېټه دجلدی رنځو نو دډا کټر (بهار ګوا) ته لاړم ،
ما وجود ئې و کوت، د کتلو نه مخکښې ئې «١٦» کلداری فيس تر ګوتو کړ،
بائې وليکل چه دوينې او بولو کتنه يکارده، دوينې او بولو کتنه مو په
١ کلداري په بل ځای کښې ر کړه او بيا دده ته راغلو ، ده راته څو ګولې
ردمېزلو دارو را کړه، او وئې ويل چه په هفته کښې درې ځله بجلی لګو ل
کاردی، ديو مريض دپاره دډا کټر خبره نه منل کفر دی، په دې و جـه
جبوراً به يوه ورځ ترمنځ ورتلم او په (٤) دقيقې بجلی لګولو ئې راځخه
١٠) کلدار ې اخيستې، آخر چه درې ځله بجلی ئې و لګو له ،
و معلومه شوه چه دا علاج ډېره موده يعنی لږ تر لږه شپږ مياشتې غواړی ،
ه بلې خوا زما ورځې هم لږې پاتې وې نو په دې لحاظ مې دجنوری
ه «٢٩» ورځ دډا کټر نه علاج بس کړ او دوروستنه دپاره مې يوه نخسه
رې و اخيسته مګر سره دې هم زه په دې پوه نشوم چه دډا کټر دارو کړ

# دهمدرد صحت دواخانه

دجنوری ۳۰:

سهٔلس بجې د ګران دوست ښاغلی عیسی‌خان سره دهمدرد دواخانې دلید
دپاره لاړو، همدرد دواخانه دزاړه ډیلي په «لال کوان» بازار کښې ده، کو
وخت چه‌مونږ د غه مشهور ځـای ته ورسېـدو، نو اول او
د «قاری محمد ارشاد حسین» په‌واسطه چه‌د ښاغلی عیسی خان دوست د حکی
عبدالحمید خان کتونځې ته‌ورغلو، بهر دانتظار خونه له مریضا نو
ډکه وه، مګر مونږ ته‌د مېلمه توب په‌وجه مخکښې حق را کړی‌شو، حکیم صاحب
د کارپه‌چوکۍ ناوست ؤ، ورسره‌دوه‌درې تنه نسخه‌لیکونکی هم وو، عیسی خا
ورته زه‌وښودلم او بیائې زما نبض وکوت، دخوورخوراهیسې راته‌په‌ډیلی کښې
د سر درد دی او دخوب د بې نظمۍ شکایت پیدا شوی و، ده د نبض
په کتو دغه شکایت معلوم کړ، دعصبی او دماغی کمزورۍ حال مې
ورته بیان کړ، پس له هغه ئې ناست کاتب ته‌د نسخې لیکلو هدایت ورکړ
اومونږ ته‌دده دزیاتی مصروفیت په‌وجه دنورو خبرو وخت پېدا نشو، خو خپل
مسئول سړی ته‌ئې وویل، چه‌دوی په‌دواخانه کښې وګرځوه او ټول ټول ځایونه
ورته وښیه، نو ددواخانې ټول ګودامونه، دداروجوړولو ځایونه، دفتر ونه
د طبیبانو دټولنې کوټه، دحکیم صاحب د کښېناستو خونه او نور موږ کتل



په هند کښې دخدائی خدمتګارو دډلې پښتانه دپښتونستان ملی بیرغ
احترام کوی



په هند کښې د حیدر آبا د پښتنو د پښتونستان ملی بیرغ پورته کړی او سلام ور ته کړی

ددارو اخیستلو کوټې ته راغلو، دلته قاري محمد ارشاد ددو اخانې
کښو ناظم مونبرته دچای بندوبس وکړاوقاري مشرف علی صاحب را سره
ښې خبرې اترې شروع کړې قاري مشرف علی له (٤٥) کالو راهیسې
همدرد دواخانه کښې کار کوی، اویو تجربه کارنیك خویه سپین
یری دی. مونبرله ده څخه په خبرو اترو کښې دهمدرد دواخانې په باب
کښې داوروسته معلومات حاصل کړی شول،

همدر ددواخانه په «١٩٠٦ع» دحکیم حافظ عبدالمجید صاحب لـه خوانـه
دوه سوه روپو په سرمایه جوړه شوې ده، چه اوس ئې دیوې لوئې مؤسسې حیثیت
ندلی دی؛ په دې دواخانه کښې ټول دارو ګان په خپله جوړیږی، په میاشت
کښې ورته نژدې درې زره مریضان ځی راځی، چه په سلو کښې اتیا تنه صحت
می، دلیـرې ځایو مریضان ورتـه دخطونو په واسطه دمرض حالات
لیږی، چه دطبیبانو دډلـی له خوا په غور کتل کیږی او دوا په پارسل
کښې و راستول کیږی، په دې دوا خا نه کښـې اوه اته تنه حکیمـان
دانجمن په صورت کار کوی، ددې دواخانې حکیمان ددهلی له طبیه کالج
راوتلی دی، دا کالج حکیم مسیح الملك اجمل خان مرحوم جوړ کړی ؤ،
کردهند دوبش نه وروسته ورته خپل پخوانی حالت پاتې نشو.

کتبې لیکېږي، ددې دواخانې موجوده سرپرست او اعلی نګران حک
عبدالحمید، دحکیم عبدالمجید خوی دی، حکیم عبدالحمید د۴۲ کالو په ع
مسلمان د مانځه او داسه پابندسړی دی، چای او سګرټ بیخی نه څکی او د تو
مریضانو د هر مرض کتنه په یواځې ځان کوی. په زرګونو خلک ور ته را
او دده په دارو خدای شفا ور کوی د همدرد دواخانې یوه څانګه دده دور
محمدسعید تر نګرانۍ لاندې په کراچۍ کتبی هم چلېږي، د همد
صحت مجله له کراچۍ څخه نشر یږي، مګر او س اراده لري چه د۱۹۵۱
له مارچ څخه په ډیلي کتبی هم نشر شی، په دې دواخانه کتبی چه مو نږ
تولوزیات نایاب څیزونه لید، هغه نبه اخلاق، عاطفه زړه سوی او د مریض
سره سمه همدردی کول وو، چه داقیمتی دارو له ډاکټرانو سره ډېر لږ پ
کېږي او داشی ډچه زمونږ په زړونو ئې یو نه هېرېدونکی اثر وکړ.

## دګاندهی د تلین ورځ

دری کاله پخوا په دې ورځ ګاندهی د هند لوی پېشوا له دنیا نه تللی
په دې وجه دا ورځ په هند کښی د ګاندهی دیاد ګیرنې او مذهبی دعا ګ
ورځ ګڼله شوې ده، ډیلی هند وان تو له و رځ دراجګاټ په لور چلې
راجګاټ هغه ځای دی، چه د ګاندهی وجود پکښی سوزول شوی دی او په هغه

گاندي ياد گارته د گلو نوهارونه په لاس ور روان وؤ، هرچا به په دروازه
کښې کوښې و ښتلې او د يو بهير په صورت په چپه خو له د گاند هي
يا گارډ يې ته ور ختل او گلونه ئې پرې اچول دوه لاسي سلام به ئې کاوه
وبيا به ترې وتل، دخلکو په مخونو او تندیو کښې د ډ ېر اخلاص، کاملې
عقيدې او محبت نښانې لوستل کېدې، په دې ورځ يو نا آشنا سړی ته پوره
ښکاره شوه، چه گاندهي په رښتيا دهندوانو پلار او يو ډېر لوی پېشوا ؤ، دا خلك
هيچانه وو مجبور کړی، د دوی را تگ د نمايش او ښود نې دپاره نه ؤ
بلکه دوی دعقيد ې او ضمير په امر د يو زه احترام ښکاره کولو دپاره
راغلي وو، کوم نظام کوم اکرام، کوم احترام چه دښځو او نرو په څېره
کښې ښکار يده، هغه ددې خبرې لوی دليل کېدی شو، چه دا خلك د اخلاص
اومحبت په يو د سمـه لار روان شوي دي. ځای په ځـای لـ
د سپيـکرونـه لـگېدلي وو، او خـلك ورته چا رچاپېر راغونډ شوي وو
پنځه بجې دهند رئيس جمهور ډاکټر راجندر اپر شاد ديو عام هندي
په څېر سپينه کشتوړی. خولۍ په سر، لنگ وهلې په خلکو کښې را ننوو
او د ناستو کتارونو په مخکښې غلي آرام درو ند کښېناست، دهند وانو
مـذ هبي «پـرارتـنـا» يعـنـي د عـاشـروع شـوه؛ اول وړوجينـکـ

غریبا نوسپین سرو اوسپین زیرو سره یوشان په څمکه ناست دمذهبی رسمو تو
کولو مشغول ؤ. د مذهبی دعا گانوله ختم نه وروسته را جند راپر ش
دیووډو کی تخت دپاسه کښیناست مخکښی ورته د ومیکرفونونه اوشاته و
تکیه کیښودی شوه. او ده د گاندهی دافکارو او نظریو پیغام خپل قوم او ملت
واوراوه دهوویل گاندهی امن او سلامتی غوښته، نن چه مونږ د هغـ
په یادو دلته، راغونډشوی یو، باید دهغه په لار قدم په قدم لاړ شوو اودهغ
وصیتونه عملی کړو. په خپل منځ کښی جنگېدل، ربړې کول د گاندهی
له هدا یاتو نه ښکاره مخالفت کول دی .
دده دخبرونه وروسته د گاندهی د تلیفنی دورخی دودد ستورختم شو اوخ
دما ښام دهوا دلگېدو سره سم خپلو خپلو ځایو نو ته روان شول .

دفروری ۲ :
سهر لس بجې زه او ښاغلی انوارالحق گران او اطیف زاده د افغانی لو بغا
دلیدو دپاره هندی ستډیوم « او بغالی » ته لاړو، دغه ستډیوم داننه یا گ
سره نژدې تازه جوړ شویدی او وائی چه دا ستډیوم دلو یې او پراخی په لحا
په ټوله اشیا کښی بې نظیره دی، افغانی لو بغاړی ټول « ٤١ » تنه وو چه دښاغ
محمدفاروق سراج دا لمپیک د رئیس په مشری د دیلی په بین المللی لو بو کښ
د گډون او برخې اخیستو دپاره هند ته راغلی وو. کوم وخت چه مونږ ر ننو

ــا غــلی ســر اج «سر دار آغا» راغی، ستړی مشی مو ور سره و کړل،
کران صاحب ورته و ویل چه ما تـه ستاسی غوندی سمه فارسی نه راځی
حو ګوزاره پکښی کو لی شم، هغه موسکی شواو دیو دوه دري خبرو نه پس
ېر ته ووت، دوی لږ ساعت پس په سرویس کښی راجګاټ ته لاړل او مونږ
ري واپس خپل ځای ته راغلو.

## دجوش ملیح آبادی ملاقات

دفروری ۳:

ما زیګر خلور بجې مو دخان غازی کابلی سره دجوش ملیح آبادی دلیدو
اراده و کړه، دزوړ دیلی په لوریه سرویس کښی کښیناستو.

له کشمیری ګیټ نه چه تېر شو نو زوړ سکو تریت ته ورسېدو، جوش به خپل
دفتر کښی ناست ؤ، دآجکل داداري کار کوونکی لکه جګندر ناتهه آزاد
و نوروسره وو، جوش دهند یو مشهور انقلا بی او آزاد خیال شا عر دی
ودآجکل دمجلې لوی مدیراوسرپرست دی. دجوش سره مو نږ یوساعت
برخوز مجلس و کړ، دده په خبره کښی دجوش، ذوق، شعراوشاعری، مستی
کښی ښکا ښې ځلېدې، درندانه او مستانه مزاج ښښتن معلومېده، په شعر
وادب کښی دعشقي او تغزلي شاعری طرفدار ؤ. جوش وویل چه زه په اصل کښی

کښله اوخیال ئې کـا وه چه پښتو درنه اوزبېزه ده، ماورته په دې باره کښې
ره دلیلونه بیان کړل.

ـ که دپښتو دثقالت وجه په پښتو کښې دثقیله حروفو (ټ، ډ، ړ) شته والی وی
نوداحروف په اردو، هندی، انګریزی اونورو اروپائی ژبو کښې هم شته
وبیا یو اځې پښتو تــه ثقیله ویل غلط دی.

ـ دهری ژبی خوږوالی اولطافت دهغې ژبې ویونکوته معلومېږی، څو مره
چه اردو دوار دووالو او فارسی فارسیوانوته لطیفه او خوږه ایسی، د غسې
پښتو په خپله پښتنو ته خوږه او مزه داره ښکاری . یو پښتون چه د پښتو
اندی نه څومره خونداخلی له بلې ژبې نه ئې هېڅکله نشی اخیستی . د غسې
هرچا ته خپله ژبه خوږه اولطیفه وی اودا یو نسبی صفت دی یواځې په فارسی
ویا کومې بلې ژبې پورې تخصیص نه لری ددې په مقابل کښې ده وویل
نوپه هندکښې ولې خلك فارسی زیاته خوښوی، ماورته وویل ددې دلیل
خوښکاره دی فارسی دمغلو په دوره کښې دهند رسمی اودرباری ژبه وه، عزت
ماموریت، نوکـری، پیسې ددې ژبې په زده کړه پورې تړلی وی نوپه دی
وجه دخلکو ضرورت او احتیاج فارسی ته زیات لیدل کیده، نن پرو
چه په هندوستان کښې انګریزی څومره محبوبیت اوعمومیت لری اوهرسړی

پښتو ژبې هيڅکله دغسې موقع نه ده مونده لې، نوځکه له نظر نه وروسته
پاتې شوې ده، ددې خبرونه وروسته د جوش ننده وغوړيدا وپه دې حقيقت
باندې ئې سرو خوځاوه کوم وخت چه ماورته دپښتو دالندۍ ترجمه کړه
گلان له خاورو پيدا کيږی ـ زماجانان تر گل نازك خاورو له ځينه
نوده وويل چه پښتو ادب خود پر نازك اولطيف خيالات لری .
بيامو ور ته دپښتو دادب قسمونه عملي دادب ، لندۍ ، چار بيتی ، غزل
د پښتو لومړی شعراونو بيان کړل، نودده په زړه کښې د پښتو په نسبت خه
رڼا پيداشوه او داآرزو ئې و کړه چه تاسې بايدپښتوادب لږلږ په خارجي
ژبو کښې هم ترجمه کړی ء .
ماورته وويل چه دا کار زمونږ په فکر کښې دی، مگر تراوسه مونږ دپښتو دا د
دذخيرې جمع کولو په کار لگياو و ، پس له دې به ددغه کار کوشش هم کوو
دفرورۍ ٤ :ـ
داورځ د کتابونو اخيستلو دپاره تا کل شوې وه ، سهر لس
بجې زه اوميرتاج محمد دډهلی دجامع مسجدسره نزدې د کتابونو پلورنځ
ته لاړو، د کتابونو داخيستلوشوق ډير ؤ مگر هر ځله چه دلگښت په کثو
کښې دډيرو پيسودرك نه ايدل کيده، نو يواځې داوروسته لس جلده کتابونه
مونږ ده ډيرش کلداري واخيستل:

## افغانی او بغاړو ته دعوت

دفروری ٦: د ماز یگر په ٤ بجې د هند د پښتون جر گې له خوا افغانی او بغاړو ته
په «وینگر» هوټل کښې د چای دعوت ورکړ شوی ؤ ' دې دعوت ته
ښاغلی نجیب الله خان ' مولانا حفظ الرحمن د هند د جمعیت العلما او ی منشی
میر مشتاق احمد د ډیلی د پوهنتون د رئیس نایب ډاکتر سین هم راغلی وو
دوینگر د هوټل پاسنی سالون له خلکو ډکه ډک ؤ ' کوم وخت چه افغانی
او بغاړی د ښاغلی سراج د د غو او بغاړو له مشر سره راغلل. نو مولا نـ
محمد اکبر د پښتون جرگې له خوا دوی ته هر کلی ووایه او د پښتو نستان
او افغانستان په باره کښې ئې ځینې نوری خبری هم وکړې - مولانا په خپل تقری
کښې وویل: مونږ ډېر خوشحاله یو چه د افغانستان او بغاړی دیو مستقل
او خپلواکې حکومت د او بغاړو په حیث دلته گورو ' افغانستان زمونږ سر
د نسل ' ژبې او مذهب ډېر ټینگ تعلقات لری او په دې وجه هغه غواړی چ
د پښتونستان پښتانه دې هم د خپلواکۍ او آزادۍ خاوندان شی ' مونږ
د افغانستان د دې اخلاقي ملگرتیا ډېره شکر یه کوو او له خدایه غواړ
چه پښتونستان هم زر ترزره یو آزاد او خپلواکی حکومت شی .

دده نه وروسته ښاغلی سراج د افغانستان د اولمپیک رئیس د کـاغ

مو نېز دجرگـې په کـارو بارد برخوشا اه شوا و له‌خدای څخه ئې زیا
کـامیا بی غوا‌ړ و .
بیا ښاغلی نجیب الله خان دپښتو نستان دروا کوښښ او دپښتنو د مجاهد
په باب کښې په انـګریزی‌ـ یوڅو خبر ې و کړ ې او بلنه دما ښا م
۷ بجو ختمه شوه .

د یو بند

د فروری‌ـ ۷ :

دو ینـګر هوټل په ما زیـګر نی دعوت کښې ما ، مولا نا محمد ا
او ګـر ا ن در یوا ړودا فیصله‌و کړه‌چه‌سبا به دیو بند ته درومو ، دمو لا
حسین احمد مدنی‌ملاقات ا و ددیو بند د مد ر سې لید ل ز ما یو ه او
ارزو وه ـ نوځـکه زه‌دې تـګـ‌ته ډ یرخوشحا له وم ، مـګر چه‌سهار شو او د
ورځ هوا ولـګېده ـ نو ګـران په کـا له کښې‌د رنځور تیا او نور و کـا ر و
په‌وجه‌د تلو نه‌ښښه وغوښته ، اوزه‌په ۱۲ بجې د مولا نا محمدا کبر ځای
لاړم، ولي محمدبا بر دپښتون جـ ګـړ په‌دفتر کښې‌دچا ی‌نې چړك دکـامل عط
په کوڅه کښې نا ست ؤ او مولا ا چېر ته بهر تللی ؤ ، او ول خو
زړه وښو ئېدچه کښه‌مولا نا به‌هم پښېما نه‌شوی وی ـ مـګر چه‌دی په یوه نیمه
را پیداشو نو زړه می لېږ غو ندی ډاډه شو ، دپاخېږ و نه‌ودوسته د ماز ی

د پو بند د دارالعلوم دروازه ته ورسېږو؟ دمولانامحمد اګبر
دیو آشنا طالب العلم کوټې ته ورغلو، دی دشپږمیاشتنی امتحان دتیاری
پاره په مطالعه بوخت ؤ، په دې نیمه شپه کښې دده بیداری زموږ په ښه هم
اغله، ژر ژر ئې دچای انتظام وکړ، بیا ئې ملا ستواودسهاردمانځه دوخت
رې مو آرام وکړ، ددیو بند ددارالعلوم په دېوالونو دننه دیو طالب العلم
ه کوټه کښې شپه تېرول د روح او زړه د خوشحالۍ یو لوی باعث ؤ
میاشت دفروری په ۸ ترمانځه اوداسه وروسته دمولانا حسین احمد مدنی سلا
و احترام ته ورغلو مولانا ددارالعلوم لمرخاته سره نژدې په خپله
پهمانخانه کښې دمېلمنو سره ناست ؤ، زموږ په ور ننو تو له ځایه پا څېد
و دلاسو نورو غېږه وورسره وکړ. د مولانا په خبرو او صحبت کښې یو
ر موز روحانی اثر لیدل کېده، دده دزړې له سپینو نورانی وېښتو څخه
دینداری، صحیح علم او پوهې رڼا ځلېده، د کوټې په دېوالونو یوې خوا ته
ـند، عربستان، مصر، ایشیا، افریقا، اروپا، بېلې نقشې ځړېدلې وې، او بلې
خوا ته «لا اله الا الله» په ښنده ښیښه کښې ځوړند ده ښکارېده. دمولانا د کوټې
ه جغرافیه کښې د ژوندون آثار پوره څرګندوو، دهند تازه اخبار و نه
مجلې په تاخونو کښې پرتې وې. مولانا په یوه ساده لباس کښې د بردرو ند

د مولانا فضل ربی صاحب سلام مې و رته و ر ساوه نو د پرخو شحاله
د هغه د حا ل احوا ل پوښتنه ئې و کړه، بیائې دمولانا سیف الرحمن تپو
و کړ- ماورته وویل چه هغه پروسږ کال وفات شوی دی - مولانا د کابل د
اولیدو یوره شوق درلود، مولانا محمد اکبر ورته وویـل چه که په آین
جشن کښې کابل ته لاړ شیء نو د پر ښه و خت به وی دی غلی شوا
وضعیت نه داسې معلومېږه که دافغانستان دجمعیت العلماله خوانه ور
دعوت ور کړی شي - نوخامخا به کابل ته لاړشی .

مر لانا دپښتونستان د وفد دلیدو ډېره آرزوښکاره کړه، مولانا اکبر ته
و و یل چه که تاسې ما ته خبر را کړ ی وای نوزه به ددوی لید و
ډیلی ته تللی وم .

بیائې په غور پدلې تنده دمولانا اکبر نه دپښتون جرگې تپوس و کړ
ما ورته دمولانا فضل ربی پیغام ورساه، هغه پیغام داؤ« حضرت شی
الهند نه چه په آخری عمر - کښې پوښتنه وشوه - چه ستاسې - خلیفه او په ځای
ناست به څوك وی؟-ده په ځواب کښې وویل :چه حسین احمد مدنی- نو ن
مونږ هم دمولانا حسین احمد مدنـی څخه پوښتنه کوو - چه دده خلف او قای
مقام به څوك وی؟» مگر مولانا ددې پوښتنې څرگند جواب و نه وایه او و ئې

او قوم دخیر دپاره دی - بنایی چه هر چاته تري کته او خیر ور سېږ ی
مولانا محمد اکبر ور ته وویل - چه ستاسی صحت ښه نه دی، دسفر او تګ
راتګ طاقت نه لری ٫ که دا تکلیف په ځان و انځلی ٫ ښه به وی - ده وویل
چه ما دوه میاشتې مخکښې وعده کړې ده - که جوړ یم - که نا جوړ هرڅه چه یم
خو وعده به خامخا پوره کوم - او بیا شکر دی اوس ښه یم - د نا جوړتیا دومره
عذر هم نشته - په آخر کې مولانا د ډېر لطف او مهر با نۍ نه ورو ستا
دمولانا فضل ربی دپاره د شیخ الهند سفر څلور جلده کتا بونه را کړل
او دمدرسې یو کار کن ته ئې وویل - چه دوی په دارالعلوم کښې و ګرځوه

د دیو بند دارالعلوم

په ۱۰ بجې دخوتنو پښتنو طالبانو سره په دننه دارالعلوم کښې و ګرځېدو
ددارالعلوم عمارت کافی لوی او ارت دی، په منځ کښې ئې دو نو بو ته و با غ
وڅلور طرف ته ئې درانو تو دروازې دی، شمالی دروازه «باب الظا هر
نومیږي - چه دافغانستان د پادشاه محمد ظاهر شاه په نامه مو سوم
ده - ددارالعلوم ودانی ټوله د اعانو په پیسو جوړه شوې ده - او هره کو ټه
یاهر ځای چه دچا په پیسو جوړ شوی دی، دهغه نوم پرې دپاسه لیکل شوی دی
نو نېز لومړ ی دمدرسې دا هتمام دفتر ته لاړو. ددارالعلوم دمدرسې مهتم

دساتنې کوټې ته لاړو' په دې کو ــه کښې له ابتدا نه تراوسه پورې ددارالعل
دحساب کتاب دفترونه ساتل شوي دي' او ددرس تدریس ټول یادداشتو
یکښې خوندي دي ـ چه ددارالعلوم دتاریخي معلوماتو لوی مخزن گڼل
کېږي' ددارالعلوم په کتابخانه کښې ټول «۶۸» زره کتابونه موجود دي
په دې کتابخانه کښې د قرآن پاك ډېرې قدیمې نسخې شته' تر ټو
نه ښخوا ېښې نسخه دشاه جهان دوختو ده ـ چه په ښکلي طلائي خط لیکلې شوې د
د کتابخانې کتابونه دعلومو دتقسیم په لحاظ په جلاجلا الماریو کښې ایښو
شوي دي ـ او دهر کتاب دپاسه لمبر لیکل شوی دی ـ دحساب کتاب په دفتر کښ
دسو چه زیرو کاتبان ناست وو ددوی دحساب کتاب' حوالو' چکونو او رسیدو
کتابونه موولیدل ـ څومره پیسې چه رارسېږي ـ هغه د دارالعلوم خزانې ت
سپارل کېږي ـ دخزانې کیلي د مهتمم په لاس ده' دخزانې پیسې دمولا
حسین احمدد نظر لاندې راخیستل کېږي ـ ددارالعلوم کالنی عاید «۲۱۲۸۷۷
کلداري او لگښت ئې «۳۵۶۶۴۷» ښودل شوی ؤ ـ مطلب دا دی چ
دهند دتقسیم نه وروسته ددې دارالعلوم په عاید کښې لږ زوالی راغلی دی
ددارالعلوم ټول طالبان په موجوده وخت کښې «۱۰۷۱» تنه دي' پخوا ت
شمېر ئې «۱۵۰۰» ؤ ـ مگر د پاکستان دجوړېدو په وجه د صوبه سرحد

ددارالعلوم طالبان بدني ورزش هم کوي، سربیره پردې د ګنډلو اونو ر
لا ســی کـارونــو صنعت هم ورښودل کېږي، ددارالعلوم دټولو نه اوي
لوستځی دارالحدیث او دارالتفسیر دی. دادواړه ځایونه ددارالعلوم په منځ
کښې دي، ددارالعلوم دتعلیم نصاب ډیر جامع او لنډدی، دوړو هلـکانو دتعلیم
سلسله هم پـکښې جاري ده، د خوش خطۍ د پاره یو ځانـله استاد لري
چـه مولانا «اشتیاق احمد» نومیږي، فعلاً د دارالعلوم له طالب العلمانـو
څـخه «۴۰۰» تـنه دخوشنو یسۍ په زده کړه بوخت دي، مونږ د دوی
د نسخ او نستعلیق د خوش نویسۍ ډیرې ښکلې نمونې واید ې، او په د ې
ډیر خوشحال شوچه ددیوبند په دارالعلوم کښې دخطاطۍ ښکلی صنعت ته
پوره توجه کیږي او ددې آرت ډیوه لا په دې تاریخي ځای کښې روښانه ده.

## دارالافتا :

د دیوبند دارالعلوم یوه ځانله دارالافتا هم لري، په دې دارالافتا کښې
اوه تنه عالمان دمولانا سیدمهدي حسن دصدارت لاندې شپه او ورځ کار کوي
دې ځای ته دټولې اسلامي دنیا نه ـ دشرعي مسایلو په باره کښې ډیرې پوښتنې
او استفتا ګانــې راځي اودوی ئې په ډیر غور ځوابونه ور کوي ـ مونږ په
دارالافتا کــښې د مولانا سید مهدي حسن سره ډیر ساعت کښېناستو

په دارالافتا کښې دفتوی لیکلو دمشق یوه څانگه هم په «۱۳٦۹هـ» کښې جوړه
ددارالعلوم پنځه تنه لایق طالبان چه د کمېټې له خوا انتخابېږي. په دې ش
کښې دفتوی لیکلو مشق کوی، اودوی ته د دې کارعملی درس ور ک
کېږی، دغه کمېټه دمولاناحسین احمد مدنی'' مولانا محمد ابرا
اومولاناسیدمهدی حسن څخه مرکبه ده. ددارالافتامشر مولاناسید مهدی ح
دی اومولاناقاضی مسعود احمد صاحب او مولاناسید احمدعلی صاحب کشر
مفتیان دی. په «۱۳۷۰هـ» کښې دمختلفو پوښتنو «۱۵۱۰» جوابو
ور کړ شوی دی.

*(جرگهٔ افغان)*

په دې دارالعلوم کښې د جرگهٔ افغان په نامه د پښتنو طالبانو
جرگه هم شته، صدر ئې ضیاء الحق سواتی او ناظم ئې د هزار
عطاءالرحمن دی، په دې جرگه کښې دافغانستان ٦ تنه، د سوات ۱۱
د هزارې ۸ تنه د گلگیت ۸ تنه دبلوچستان ۳ تنه دمردان ۱، دبنو ۲، د پېښو
یو تن شامل دی، دوی اوس دپښتونستان دمسئلې سره هم پوره دلچسپی ښکا
کوی او په دې موضوع کښې کله کله جلسې او تقریرونه کو

دشیخ الهند مزار: ددارالعلوم دلیدو نه وروسته دشیخ الهند مر یستون

ورو کی ماهي پشت قبر کښې دخا ورولاندې داسلامي دنیایوډ پرلوی لا
ښووونکي اوصحیح عالم دمرګ په دروند خوب ویده دی، دده قبر سرت
ددارالعلوم دجوړوونکي اومؤسس مولانا محمدقاسم نانتوی (رح) قبر د
چه په (۱۲۹۷) ه کښې وفات شوی دی او کښته خواته د مفتي عزیزالرحم
صاحب قبر دی چه په(۱۳٤۷) ه وفات شوی دی - ددارالعلو
ددې لویوعالمانوروح ته مودزړه داخلاص دعا وکړه اوبیا د یوسا عم
آرام دپاره واپس دارالعلوم ته راغلو - دپښتنو طالبانو سره مود پښتونستان
په مسئله خبرې اترې وکړې او دوی موپه دې خبره پوه کړل چه - په دې بار
کښې د پاکستان پروپاګنډه صرف غولول او داسلام په نامه خلکو
دوکه ورکول دی - که نه دپاکستان واکمن دصحیح اسلام نه خبر هم نه د
،پښتونستان مونږ یواځې د پښتنو د آزادۍ د پاره نه غواړو - بلک
د پښتونستان جوړېدل د اسلام دپاره یو لوی قوت دی - پښتانه تر هر چ
زیات په اسلام ټینګ ولاړ دی، نو ځکه په اسلامي لحا
نور ضعیف الاسلام خلك په دوی دحکومت کولو حق نه لري - بلک
دحکومت کولو حق او بیا په تېره په خپل خان، قوم اوخپله خاوره باند
دحکومت کولو حق هغه څوك لري - چه قوی الاسلام وی - یعنی اسلام ئ
تر نورو قوی وی - او داپښتانه دی - په دې خبرو د دوی پوره تسلی وشو

په عمومي لحاظ مونږ ددیوبند په ژوندي ، پرشور علمي او اخلا
محیط کښي داسلام شغلې او پلوشې ، دعلم خزانې او داخلاقو لويې لو
مجسمې وایدې . ددې ځای دټولو طالبانو او عالمانو په څېر و ، کړه و
او ناسته ولاړه کښي ښه اخلاق درانه خوی ونه ، لیاقت ، پوهه ، صفا
او سوتره ګی ، ذوق او سلیقه ، نظام او دسپلین حرکت او ژوند ، بیدا ر
او حساسیت او داسې نور صفات معلومېدل - دیوبند سربېره پر دې چه په مشر
کښي د علمي او اجتماعي و ظایفو یو لوی مرکز دی ، دسیاسي بیداری
یو لوی مرکز هم پاتې شوی دی ، ددیوبند دارالعلوم په دیوالونو د
هند دآزادۍ لویو لویو پهلوانانو ځانونه ستړي کړي دي او دد
ځای نه ئې دخپلو ارادو دعملي کولو قوت او الهام اخستي دی . ددیوبند
په لارو کوڅو کښي د حکیم اجمل خان ، ډاکټر مختار احمد انصاري
مولانا عبیدالله سندهي دخوزودرنو نومونو انګازې اوس هم موجودي دي
مونږ د ماز یګر په ٤ بجې ددیو بند خوا ز ه خاطرات له ځان سر
ر او اخیستل او دټیسن په لور راروان شو و .

دهندی ادبي مرکه

دفروري داتمې دورځې څلور نیمې بجې وې چه له دیوبند نه په ګاډي کښ

ځل دغلا یو نیم نظر ددې دپاره کـوی چه دنابلدی پرده وشلوی
اودنظر پلوشې یو تربله غاړه غړې‌وړشی. مااو مولانا اکبر دپښتونستان
په باره کښې خبرې کولې، زمونږ دریل ملگری له اول نه مونږ ته
ملتفت وو، سر بېره په‌غوږ نیولو دستر گو دتیزو پلوشو رڼا به ئې هم په‌مونږ
را نوستله. دغه‌سړی اودغه‌میرمن سره ښځه‌اوخاوند معلومېدل په یو مرموز
طرز کښې ئې دشوندو په سر چه دستر گو په کونج ئې مونږ ته کتل
خپل مېړه ته وویل چه دا خلك پښتونستانیان دی؟ مونږ پوه شو چه
ددې خلـکو په ژبه کښې زمونږ سره د خبرو کولو اراده پیداشوېده نوزرمی
ترې‌پوښتنه وکړه چه تاسې دپښتونستان نوم‌اورېدلی دی؟ ده وویل هو!
ددې نه‌پس‌ورسره‌مولانا په خبرو گرم راغی د پاکستان اوهندوستان
اودلته اوهلته دمسلمانانو په حالت ئې ډېرې خبرې اترې وکړې ناستې
میرمن‌چه په خبرو کښې ئې دتهذیب او تعلیم ښې ځلېدې‌اودښه صورت اوسیرت
خاوندوه هم‌په خبرو کښې ځان‌شریکول غوښتل اودمولانادژړه ستنی هم
گړی په گړی‌اورکېږدې، بیا دپښتونستان خبری شروع شوی
مونږ دوی د پښتونستان په اصل حقیقت او دپاکستان په ظلم
زیاتی او ناروا چه‌دپښتنو سره ئې کـوی ښه‌وپوهول او خدای

دهند په هر ځا یکښی ما ته معلومه شوه چه دافغانستان په باره کښی دهند
پخوانی حکومت دافغانستان دبد معرفی کو لو دپاره کافی کوشش
کړی دی. خیر ... دوی وویل په افغانستان کښی دتعلیم څه حال دی
ما یوویل چه په افغانستان کښی دتعلیم حال دهر ځای نه ښه دی
دې معنی چه هلته ټول تعلیم وړیا دی له ابتدائی تعلیم نه نیو
تر آخره پورې ټول تعلیم د حکومت په پیسو کیږی، دوډی، جا
ددرس کتابونه ټول وړیادی، غریب او مالدار بوشان دتعلیم له میوو څخ
کټه اخستلای شی. تر دې پورې چه د تعلیم له خوانه یو شاګرد یو
پیسې خرڅولو ته هم ضرورت نه لری. دوی بیخی په دې خبره تعجب و
و زمادی خبری ته دومره اریان شول چه نژدې وه په ما د دروغجن حک
کړی، خو د خدای فضل و د رشتین دروغجن کېدل ګرا نه خبره ده
مولانا هم زما دخبرو تصدیق و کړاو ددوی زړه ته پریوته. بیا میر منی
افغانستان کښی د پردې او د ښځو د تعلیم تپوس وکړ، ما وویل:
افغانستان کښی دغسې بې پرده ګې نشته لکه چه په نورو ملکو نو کښی
لیدل کیږی. مګر د پښتنو ښځی په هر ځای کښی د سړو سره خپل
کارونه کوی او په دې وجه دمخ یادلاسو پټولو ضرورت نه پاتی کیږی

سینما گانی شته ؟ ما په ډېره نرمۍ جواب ور کړ په افغانستان کښې ضرو
سینما گانی شته، په کابل، قندهار، هرات هرځای کښې موجودی دی، او ک
ته چرته کابل ته راشې نو په ډېر ډاډئې کتلای شې ' پوښتنې ډېر ې وشوې
خو آخری پوښتنه ئې داوه چه په افغانستان کښې لوی شاعران څو ل
دی ؟ مولانا زمانه ورانډی ځواب ور کړچه یو شاعر خوادادی ستامخ کښې
نا ست دی' ماورته وویل دپښتو ژبې مشهور شاعران نور دی او الفت ' بېنو
او خادم نومېږی .

ومی لیدل چه ددې تندی نور هم وغوړېد او غوښتل ئې چه پس له دې
زما سره نور مجلس د یو شاعر په حیث وکړی مگر له بد قسمتۍ نه
د« غازی آباد » ټیسن را ورسېد دوی لگنهو ته تلونکې وو او موږ ډېلی
ته ' او په دې وجه د مر کې لمن لنډه شوه ' خالی دتلو او پېلېدو په وخت
کښې دې وویل چه زه هم لیکونکې یم او افسانې لیکل می خوښ دی
موږ ئې د نامه دپېژندلو سره د لچسپی پیداشوه چه تپوس موترې وکړ
جواب کښې موږ « نسیم چشتی » نوم ترغوږ و شو ' دې وویل چه زم

# د ولي محمد بابر دعوت

د فروري په ۱۰ ما ښام ښاغلي ولي محمد بابر د ښي ده د ي د پا
و بللم ، بابر د پښتو ژبي يو مشهور نطاق دی ، دوه کاله ئي د کشمير درادي
نه خپل خوندور غبږ پښتنو ته رسولي دي او اوس د هند درا ډيو په پښت
ځانګه کښي د پښتو نطاق دی .

دې مېلمستيا ته مولانا محمدا کبر ، مير مشتاق احمد ، مولوی عبدالباقي
او څو تنه نور هم راغلي وو ، د ډوډی په سر هر قسم بحث ګرم ؤ
مولوی عبدالباقي يوادبي او علمي سړی معلومېده که څه هم اوس په
سياست کښي کار کوی .

د پښتو دا دبياتو او آثارو بحث منځ ته راغی ، په دې برخه کښي
ما کافي معلومات ده ته وړاندې کړل . د پښتو د ادب د تاريخ بيلي دوري
، له فارسي نه د پښتو د شعر اغو ښتوب ، د پښتو ملي ادب ، لنډ ی او نور
د پښتو نوی آثار ، ګرامری کتابونه ، په پښتو کښي د دايرة المعارف
چاپيدل دا ټول مي ورته بيان کړل ، خدای شته چه لکه د نورونا خبرو
خوندی اول اريان او بيا خوشحاله شو وئې ويل زما په معلوماتو کښي

## دهند پلازمینی (پایتخت)

پرو کرا م داؤچه دجنوری په ۱۳ به له ډیلی نه روانېږم، نو دادی پخوا له
وا نېد و نه غواړم ددې لوی ښار چه نن دهنداو ایشیا دسیاست لوی مرکزدی څه
څه حالات لوستونکو ته وړاندی کړم. ډیلی په نوی او زوړ ډیلی ویشل شوی دی،
په نوی ډیلی کښی د نوی تهذیب او په زوړ کښی دهند دپخوانی تهذیب رنګارنګ
منظري لیدل کېږی، نوی ډیلی دودانیې، ښکلو ښکلو کوټیو، لویو سړکونو
تو او پلنو واټونو په لحاظ دایشیا یو ښکلی ښاردی، دموټرو، لارو، ګاډیو،
ټرسایکلونو، رکشاسایکلونو چلند پکښی زیات لیدل کېږی د کرایی موټرو نه
کښی په میل (۱ ۲) انې اخلی، مګر دنا آشنا سړی دپاره په دی موټرونو کښی
ور پدلاو تلل ر، تلل یو لوی غم دی، ځکه یو څو دمیتر په حساب ښه نه پوهېږی او بل
ته دلارو او ځایونو پته نه وی، یو ټکسی والا په ډېره آسانی کولای شی چه
دوورو یو په ځای درڅخه ښځه روپۍ په داسی صورت واخلی چه ته به خپه
ه چه خوشحاله هم ئې مثلاً چه ټکسی والا ته دیو ځای نوم واخلې نو دی دې هغه
ای ته خامخا په اوږده لار بیائې چه پیسې درنه زیاتی واخلی او سیل هم درباندی
کړی، رکشاسایکلونه د کرایې په لحاظ اقتصادی دی او دا په ډیلی کښی
نوی او ښه شی معلومېږی، رکشا په اصل کښی د درې پښو موټرسایکل دی،

مشهور باز ارئې څه قدر لوی اوښه دی، په منځ کښې ئې یو لوی گینټه ولاړ دی چه په هغه هم د خلکو له ډیر شراوشور نه سرو چور لیداو د فروری په ... په ځمکه راوغورځېد. دی څه چه « نهه » تنه غریبان ئې هم له ځان سره آ خر ... ته بو تلل .

دزوړ ډیلی بازارو نه له خلکو ترخولې ډکوی، لاری ئې مو ټرو نه، تانگ... دغو یانو گاډی ترامو نه او هر بلا بترېکښې گډوډروان وی. په ډیلی کښ... ترافیک دچپ لاس سیستم چاوی، په ډیلی کښې زوړ او نوی تهذیب گډوډ لید... کېږی او دهر تهذیب نمو نې پکښې شته که یو پلو ته اروپائې لباسو نه ښکار... نو بل طرف ته اوږدې گیگرې، ساړی، لنگو نه شی وانی ستر گو ته مخکښې مخک... کېږی. مگر منځکوره ښکلی لباس د پنجاب کمیس او پر تو گ دی چه ډیر ... بریښی . په ډیلې کښې نن پرون د پنا گیرو په وجه خلک ډیر زیات شوی دی ... وائی چه نږدی اتلس لکه خلک ددې ښار په کوڅو کښې کښته پورته کېږی ... د ډیلې خواوشا کې ډیر پنا گیر پراته دی دچا حالت ښه او دچا بد دی څوک په خیم... کښې او څوک دو ښو په جو نگړو کښې شپې ورځې تېروی، حکومت سره د ډ... کوشش بیا هم د دې خلکو په پوره انتظام نه دی کامیاب شوی، « راجندر نگر ... دپناه گیرو دپاره یو نوی ښار جوړ شوی دی په نوی دیلی کښې « کناټ پلیس ...

او هو ټاو نه تر هر څه زيات دی، وينګر، والګا، نيرو لا، ګرين، مبسی، الف
مرينه، انډيا کافي هاوس، سنټرل کورټ ئي په ټولو کښې مشهو ردی. امپير
هو ټل په نوی ډيلی کښې تر ټولو زيات شهرت لری په شپه ورځ کښې ۵۰۰ کلدا
ور کوونکی سړی يکښې شپه تېرولای شی په نوی ډيلی کښې ديو متوسط هو
د ۲٤ ساعتو خرڅ ۱۵ کلداری او په زوړ ډيلی کښې لس کلداری دی. په ډ
کښې د هو ټليانو لباس اکثر سپين وی، ځکه د تورو رنګونو سره دغه ښکا
مګر په ايران کښې د سپينو رنګونو سره بيا تور لباس خوند کوی .
د نوی ډيلی اکثر بلډنګونه او نوی ماڼی د دوهم جنګ په دوران کښې امريکا
جوړی کړی دی په ډيلی او دهند په لويو ښارونو کښې تعليم يافته خلک مهذب ا
چال چلند کښې ښه دی، نرمی او کلاری د دوی فطری خوی دی، په هره
ګونه کښې خلک په خپله کتار جوړوی د ټيل ما ټيل نه ځان ساتی، د سرويسو
په انتظار کښې چپه خوله ، غلی آرام کتارو دريږی او د صف په شکل
خپل واری يو په بل پسی په سرويسونو او ترامونو کښې سوريږی ښځی او سړی
سرويسونو کښې ګډوډ کښيني مګر سړی هر ځای ښځو ته خپل ځايونه پريښو
ښه اخلاق بولی، او رښتيا هم ډير ښه کار دی ځکه چه د احترام او نمانځنی ور خلک
عزت د ژوندون يو لازمی خبره ده، خينی خلک خو دغسی قصو ته "جنسی تمايل

«زوجي تمایل» په ډېلا ډېر ښه نوم وی، دښو اخلاقو په لړ کښې په او
درجه د سپین ږیری، ضعیف ما شوم، رنځور او غریب احتـر ام او ز
سا تنـه یـکـا رده که چېری پـه ټولنو، مجلسو نو، دعوتو نو او سرو پسو
کښې دغه چال چلندهم پیداشی یاو لیدی شی نو هغه وخت ور ته ښه اخلا
یااخلاقي چال چلندو یل مناسب بریښی .

یواځې دښځوهغه هم دپېغلو اوښکلو احترام یادوی ته ځای پر ښو دل د
اخلاقو د کلمې دپا ره صحیح مصداق نشی کېدای .

خـیر په نوی ډیلی کښې دبر ق او تیلفون ستنې بېخی نه ښکاری خو تعج
مه کوی چه زړی ټول دځمکی لاندې پټ ښول شوی دی.

په ډیلی بلـکه په ټول هند کښې خلك ټول سر تور ګرځی او خولی په د کا نو
کښې زړېږی، یواځې انګریزی او نورو والی خولی هم لږې ډېری لیدل کېږی
دنوی تهذیب سرهسم دښځواو نرو ترمنځ فرق او بېلتون ډېر کم شوی دی
دپخوا زمانې دانسانانـو پشان دموجوده زمانې منور خلك دهجر په امې
ځان سېزل نه غواړی او نه په دنیا کښـې دبېلتون سختۍ تېرولای شی، قدر
نر او ښځه دژوندون دښایست دپاره یوه طبیعی جوړه پیدا کړې ده، نو ځک
ښځې او نر په بازارو نو، هوټلو نو باغونو کښې جوړی جوړی لیدل کېږ

اوړی ملابا ندې لکه ور ښېمین ګلو نه تا لو نه وهی په اوس وخت کښې
دا ظلم نشم کولای، چه ددوی پښتو ور ښېمینو زلفو ته ښامار ان ووایم، دمار او ښا
بد او مکروه نوم دا سې ځای سره نه ښایی، ماران خلك چیچی، وجو دله زه
د کوی او د زلفو پاسته تارونه زخمی پرهرونه ګندی او زړونه رغوی چاد
په نرم فرش یوه کمڅی اوچا په دواړو اوږو دوه کمڅی شا ته غورځولی
اودزړونو قافلې په ځان پسې را کاږی، چادتورو کجلی وښتو نه دنرۍ غا
دپا سه ور ښېمین چتـر یاد خلکو دسر پناهی چترۍ جوړه کړېوی اوچاور
شا ته غوټه اچولې وی، دهند دلطف اوخوند په دنیا کښې داورو ستهشي
دیا دسا تلو وړدی. دوه لاســی سلا مــو نه، دشو نډو په سر دخندا په زمز
کښې نمستې اواد ابر سو نه، دموسیقی رنګارنګ نغمې او آهنګو
دور ښېمینو حنجرو نری پاسته آوازو نه، دتورو کجلی زلفانو اوزده تا لو
سوچه رپیدونکی کمیسو نه، دطاؤسانو اداونازونه، د ګردو غاړو امیلو
د تندیو سره خا لو نه «بیندی» درنګینو کڅوړو لاسی جیبو نه او دا سې ن
مګر سره ددې رنګینې اوما لګینې په ډیلی کښې دد نګو لوړو قدونو ډ
قاتی ده، قدونه عموما ټیټ اومندری دی او کله چه څوك یوسړی او یوه ښ
په لاره کښې جوړه روان وویني او دښځې سر دسړی داوږ ویا سینې په برا

# له ډيلي نه روانېدل

دجنوري ۱۳:

ماښام په ۹ بجو د ګران صاحب په ځاى كښې درخصتېدو اوجدا كېدو وروسته
سلكي روې، ددوډۍ دخوړلو نه وروسته مودعيسى خان، احسان او نوروس
خداى په اماني و كړه اود ګران، سراج الحق، مير تاج محمد سره په موټر ك
د ډيلي د ګاډۍ ټېسن ته روان شو، په ټېسن كښي زما خوا خو ز
وروعبدالرزاق صافى چه په ډيلي كښې دبلخ دشركت نماينده دى « مخه ښې »
راغلى ؤ، د مولانا محمدا كبرانتظار موووېست، خو په آخره خاتمه كښ
معلوم نشو، زما د آګرې دسفر ملګرى خان غازى كابلى هم راسره
ګاډى لسو بجو ته نژدې درو انېدو چيغه وكړه، دډيلې د ۲٤ ور ځو د خو
خاطراتو په يادمې دټولو ملګرو سره ديواوز دبېلتون په نيت غېږ ور ك
تلو نكى ګاډى ته وختل اوپاته كېدونكي خپلو ځايونو ته روان شول شپه
په ګاډى كښې دخوب په نيت پرېوتم خو دمخكښې لوى سفرفكر اود ګاډ
حركت ستر ګو پټو لو ته پرې نه ښودم؛

دشپې دونيمې بجې دا ګرې دټېسن پنډه يان ګاډى ته راورسېدل، له دې ځاى
دسفر د تكليفونو سر و نيبت، په دې نيمه شپه چر ته دتلو شا ن هم نه

دفروری‌د۱٤: شپه په دې صورت تېره شوه سهر اګره او تاج محل
دا ګرې ته مو دخپل عمری عادت مطابق د(تاج محل) مناری ښکل کړې
دممتاز او شاهجهان داديرې سپين بر ښو مرمري کانو د نمر دپلو شو
ملګرتيا د(جمنا) په نرم فرش د نور ورانګې ورونو ستې ، مونږ هم دد
بې نظيرې منظرې د ننداړې په غرض په موټر کښې دا ګرې د بازار په مند
(تاج محل) ته ووتو ، زمونږ نه مخکښې نور تماشګير او سيلانيان هم کښته پور
ګرځېدل ، تاج محل که څه هم په اګره ( اکبر آباد ) يا په بل عبارت
دمغلو په په فردوس ګښې خالي يو عمارت دی ، مګر دا ګرې په سترګو کښ
ئې د کسې حيثيت او عزت موندلی دی .

د تاج محل له سپينو ځلاندو صيقلي ډبرو له هرې ډډې نه اوس هم ديو
ايرانۍ شاهزادګۍ دحسن او ښکلا رڼاګانې راخپرې چه سترګې ور
برېښې او عقل ورته حيرانېږی ، تاج محل يا د ممتاز بېګم او شاهجهان
آرامګاه چه په دنيا کښې دشاهانه مينې او محبت د ټولو نه لوی يادګار د
، د(جمنا) دسيند په غاړه له ډبر ليرې نه د سترګو نظر و نه د بر ښن
په څېر راګازي ، په زرګونو سيلانو د تاج محل په ستاينه قلمو نه خوځولی دی
مشهور مورخ ډبليو . ريمسی ليکلی دی چه تاج محل يو ښکلې مرغلره د

کار کړی دی او شپېز کروړه روپۍ پرې لګېدلی دی . (۱)

د شاهجهان زړه دخپلې ګرانې ماینې ارجمند بانو ( ممتازمحل
په مرګ د پېر دردېدلی ؤ، نو دزړه دتسلی د پاره ئې یوه داسې مقبر
جوړول و غوښتل، چه په دنیا کښې ئې نظیر نه وی • دتاج محل د د
ګومبت جګوالی اتیا فټه او د سر مناره ئې ۳۲ فټه ده، دمرمرو په کا
کښې ګلکارۍ او نقش نګارته ګوته په غاښ نیول کېږی .

په دې ښکلی بې نظیره مقبره کښې اوس شاجهان هم دخپلې زړه پور
ملګرې سره څنګ په څنګ په ابدی خوب ویده دی او کوم سره زرج
دوی په ژوند تول کړی، وو او وروس له مرګه ئې هم له ځان سره تل غوښتل
هغه ترې تول مرهټا نو او انګریزانو تښتولی دی، دتاج محل قبلې طرف
یو لوی جماعت هم شته، په محراب کښې ئې ددرې تنو دمانځه ځای دی
زمونږ سره دا ګرې یو بومیا (رهنما) هم ؤ او ځان ئې مؤ رخ هم با
ده وویل چه (شاه جهان) چه به دلته مانځه ته راته، نو دوه لونډې به هم ورسر
راتلې او یوه به ئې یوه څنګ ته او بله به ئې بل څنګ ته ودرېدله، ما ور
وویل چه داخو نوده لوی ناروا کار کاوه ځکه چه په جمع کښې دخلک
دوراندې د ښځو دربدل ناروا دی او بل دامام په خوا کښې هم د بل چ
دربدل جایز نه دی، دغه بېچاره په دې خبر و نو ر خبر نه ؤ .

شاهی کلاده، په لویه جنو بی در وازه ددووانوپه تکټ ورننو تو، د مغلو
دشوکت، عیاشۍ نښې نښانې دهرې دبرې په مخ لیکلې ښکارېدې، اکبری
محل، جهانګیری محل، شاه جهانی محل، خاص محل، انګوری باغ
شیش محل، مثمن برج، مینامسجد، دیوان خاص، شکارګاه، اکبری حمام
نګینه مسجد، دیوان عام، موتی مسجد، ددې کلامشهور عمارتونه دي
په کلا کښې دننه یو (مینا بازار) هم شته چه په میاشت کښې یو ځل دلته
دښځو بازار جوړېده او ډېرې ښکلې پېغلې او نجونې به ورته راتلې.
سربېره په دې، په کلا کښې دننه د «سلیم ګډه» په نامه هم یوځای شته، چه دشیرشاه
سوری دځوی (سلیم شاه) یادګار دی.

تاریخونه لیکی چه دآګرې کلا دجیپال دخاندان یو بادل سنګهه نومی راجه
دېخوانۍ زړې کلا په ځای جوړه کړې وه او «بادل ګډه» ئې بلله، بیا او د هې
پاچاهانو په دې کلا کې ډېرې ودانۍ وکړې، سلیم شاه دشیرشاه سوری ځوی
هم په دې کلا کښې ښه ښه ځایونه زیات کړل، بابر ددې کلا په یو بـا
کښې مړ شوی دی، همایون دلته تاج پوشی کړې ده، شاهجهان اوه کا
په همدې کلا کښې دخپل ځوی اورنګزیب دلاسه بندی ؤ. دبند سخت عم
به ئې یواځې دتاج محل په لیدو تېراوه، چه آخر په همدغه کلا کښې مړ شو

دلچسپی نه وه، بازار تنگ او کثیف ؤاو دا گري دښارهم دغه حال معلو مېده
خومره چه دا گري نوم اوشهرت دی، ښارئې هغومره بې خوندهاو بې مزې دی
داسې ښکار پده چه اگري دخپل دبدب وخت تېر کړی دی، یو وخت دمغلو
فردوس بلل کېده او هغه وخت دجمناسیند دتاج محل ددیوالو نو گټی ښکلو
مګر نن خالي دیو موزیم حیثیت لری.

دسینما ننداره: دتاج محل دلیدو نه وروسته را باندی په اگره کښې ورځ
ترخه شوه، نه پوهېدو چه څه وکړو، خان غازی ته مې وویل چه دلته خو نو
څه دلچسپی نشته، گاډی هم داوخت نه ځی چه لاړشو، ده به غلی سرخوځاو
اوڅه ئې نه ویل، آخر په ۳ بجې تېسن ته شپې د۲ بجو دگاډی دټکت داخیسته
دپاره لاړو، ټکت موواخیست او بېرته په ټانګه کښې ښار ته راو گرځېد
دټانګې اس په لاره کښې وښوئېد، که مو نېز نه کوزېدو، هم ئې زکو پد و
الهٔ کړو، پیاده په بازار کښې تلو او ساعت په ساعت را باندي وخت غمېده
په دې منځ کښې دخان غازی یو سکهه اشنا «جگندر سنگه سا هن» را پیداش
خوش طبع ځلمی ؤ، سمدستي ئې دچای هوټل ته بوتلو، څه قدر مو طبیعت ښه ش
بیائې دسینما د تلو ووی، مو نېز هم له خدای نه داساعت غوښت، د« نندټا کی
نومې سینما ټانګه موونیوله، هلته دخان غازی په بل اشنا «پریم ناتهه کپور

په عمر کښې به ایله لس پنځلس ځله تللی یم؛ هغه هم ملګرو ته مې ویلی دی
چه زما په سینما کښې حضور برابر نه وی، که سینما ته چېرته تللی ی
پوره خوندمې ترې اخیستی نه دی او په قصه پوهشوی نه یم. ددې یوه وجه خو داو
چه ما د نظر د کمزورۍ په وجه دعکسو نو منظره ښه نه لیدله، نو زما تو ج
به ئې نه راخکله، په هندوستان کښې خوما نوی سترګی «سترګی» پیـد
کړې وې او دا اول ځل ؤ چه ما په روښانه صورت دسینما دفلم منظره ولید
نو ځکه دفلم په قصه او مطلب هم ښه پوه شوم او مزه ئې هم را کړه. د هندو ا
ه زوړ تهذیب کښې دښځو په باره کې ډېر ناوړه او زړه دردوونکی رواجونه شته دی
مثلاً یو جینۍ چه کونډه شي نو بیا بیخی بل میړه نشي کولای، داسې ښځې مر
ښځه بد مرغه او بد بخته ګڼل کیږي او بیخی د انسانانو په ټولنه او سو سایټۍ
کښې د انسانیت حق نه ور کول کیږي، بله دا ده چه د لور پلار به هم لور د کو
ور کوی او هم به ورسره دومره مال ور کوی چه څه ئې په کور کښې مو ند یش
دغریب او نادار سړی د لور تور وېښته د پلار په کاله کښې سپینیږی، ځک
تر څو چه ئې د لور سره پوره داج (جهیز) نه وی، څوک ور تـه غـا ړه
نـږدی ز مونږ په ملك کښې د هلک پـلار منتو نه کوی، چه لور را کړ
او ډېرې پیسې او مال هم ور کـوی. مګر په هندوانو کښې د جینۍ
پلار د هلک پلار ته زارۍ او منتو نه کـوی، چه ز مال ورقبوله کړه، هغه ورت

... واجو دابدر کوی چه کوشش تبلیغی هم نور او ده کړي ندي ورا ته پارلمان
... فلم اجتماعي او تبلیغي یو کښې سلسله دې په فلم ، دجهیز شی، ک ور
... چندا ده فتح بال د لوبو دسورج کومه ورځ » دي سورج او چندا هیرو فلم ددې
... دروازې په لاس فتح بال چندا دی، غلی ور پسې فتح بال په چه دی. دي بوتي پر کره
... جو د دې ئې پښنا بر دمیني دی، جنګېدلي سره کې ستر رو دوا دده، تلې و ا ر
... کتوئ لیدو په دې ده، رسېدلي ته زړه مر دز سمدستي او چلیدلي کښې کو نو پهر
په یو بل ستر ګې خوږې شوې او دمیني رازېږي یو بل ته وسپارل.—
... رنګیر دعمر کښې وبڼ باغ په له کا دخپل چندا ورېدې او ورځې شپې
... کو سبا شپې نیمې او ونو دښ مینه په چندا د کښې، کور په خپل سورج او تېرول لې سپر
... کړ شروع بس بندو داده دوا دده مور او پلار دسورج ؤ کیل او پلار سورج د ·
... بنځ بلې دي د ئې پلار مګر ؤ، کړی درک ته چیر کښې په خپلو له ورئې مور
... په خپ دسورج پلار دسورج — کولي خبرې سره دپلار ، چندا د په واسطه
... قد — نیو نه سرو خیال دمور چندا د او نیوا ورو ز خبرې دې نو څکه ؤ، هم پوه
... نه و پو نه لي خوشحا د هغه و ، ورغي کره دپلار چندا د پلار دسورج چه داوشوه
... چ داوه بدبختي دده مګر شو، پیدا خوی کیل او دیو ئې له لور چه ولې ،وهل و
... ر ا منصبد فو خي لوی یو کښې ، حیثیت او عزت نسب په نه که ، ؤ غریب

نه‌دی را لیږلی ، زما کور په دغسې بې ماله بې سامانه ښځې بد ښکار
آخر گوزاره‌تنګه شوه چندائې له کورنه وشړله د« سورج » عمر تریخ ش
ملته دچندا ورځ هم بده‌شوه، کله کله به‌دوانو یو بل ته دغلاخطونه لیږل
یوه‌شپه چندا دسورج کاله‌ته‌لاړه‌او حسن ددولت کوټې ته په‌ډېره خوارۍ
ودرېد (حسن د دولت کوټې ته ځي ځولۍ نیولې) دچند امور دروازې
راغله دائې ور ټله‌و کنځله او نا امېده ئې بېرته‌وشړله ــ آخر د سورج م
خپل ځوی له دبل واده بندوبس و کړ، چه‌واده‌جوړشو، دسورج زړه دچنداسـ
اـګېد لی ؤ ، دمینې په‌قانون مجبور ؤ، ځان ئې له او چت ځای نه‌وغورځ
مور ئې دواده په‌ځای په‌علاج او دارو درملو اخته‌شوه، سورج در نځوری‌په‌وخ
کښې چندا له خولې ، نه غورځوله، چندا هم په کور کښې بېتابه‌وه، چه‌خبر
شوه ځان ئې داشنا کاله‌ته‌راورساوه، دسورج ستر ګې وغړېدې‌او څه‌قدر ښه‌
، د سور ج مور بیاله‌چنداسره‌بدخوئی‌راواخیسته‌او لویه وجه‌ئې خالی‌داوه‌
پلار ئې و ر سره «داج» نه‌ؤ ر الېږلی ــ پلار ئې چه ددې قصو نه‌خبر ېد
دخپلې لور په حال به ئې زار زار ژړل؛ آخر ئې د دې بېغور ختمول و غوښتل
خپل کور ئې خرڅ کړ، دچندادپاره ئې بې حساب «جهېز» تیار کړ دیه د نـګ
د و نیک د« سورج » کور ته په‌هسکه غاړه‌دداج مخکښې روان شو

بهر دچندا پلار دداج اوسامان سره ولاړو. دسورج او دچندا دمرګ آوازه خپره شوه، په ښار کښې ډنډ ورو وغږېده، دوه دمتني پتنګان، دوه رښتينی عاشقان، دوه کورونه، دوه فاميلونه، په يو وخت کښې دبد رواج د لاسه تباشول، ورك شول، برباد شول او قصه ختمه شوه. داوه دفلم قصه - په دې فلم کښې ډېرې زړه دردو ونکې ترا ژدی پردې ښو دلې شوې. دچندا او سورج دواده ورځ يکښې دشاهانو له جشنو نو هم زيا نه وه، دموسيقۍ اوناچ په برخه کښې خو دهندوستان هر فلم قيامتو نه کوی، دد ې فلم مختلفو منظرو زمو نږله ستر ګو ډېرې او ښکې و بهوا ې، دزړه خيری مو پاك او زړه موصاف شو، چه بهر راووتو د پرېم ناتهه ،شکريه موادا کړه او خپل هوټل ته لاړو . په هند کښې دفلم سازۍ صنعت ډېر وړ اندې تللی دی، پخوا ئې تجارتی او دساعت تېرۍ رنګ درلود، مګر اوس ئې قومی او اجتماعی شکل مو ندلی دی، وايی چه هند په دې برخه کښې د دنيا دوهمه درجه ملك دی .

## دبمبۍ په لور

دشپې په يو هبجه مو دهوټل والا سره حساب کتاب پرې کړ، ديو وخت دو د ې او يو وخت چای ئې لس روپۍ واخيستې، نا اشنا سری په نا آشنا وطن کښې

خو له اول نه بستره نه وه، ولې چه په هوائي سفرونو کښې بستره يو اوی بوج وی
ماخپل کوټ په پښو راواچاوه او ويرې و نم، ګاډی ۵ بجې ګو الي
او ۶ نيمې بجې (جانسی) ته ورسيد، ما سره ناست ملګری کوز شول او زه له د
يوا ځې پاته شوم، په داسې وخت کښې ښه ملګری کتاب وی، د نياز فت
پوری د « نګارستان » مطالعه په يوا ځې د به اوروان ر ږل کښې يوه
مشغولاوه، ماوې چه ګونډ ې دخپل کار او مطالعې په کوټه کښې ناست
خالي دربل کړيکو به دهندپه لوی ملک کښې د سفر خبر را ک ر
د نګارستان په مطالعې کښې د يوا ځې خند و لو طاقت هم مو جو
خصو صاً د مولانا يا نوسره د نياز خو ګينټې مصاحبه ډېره زړه پورې خو
ورمضمون ؤ، په يوه نيمه بجه د بهوپال د ټيسن تختې ښکاره شوې، دلته ز
يوا ځې تو ب هم ختم شو او ډبې ته نور لا روی هم را و ختل پس له دې
دفطرت مطالعه شروع کړه، دهندوستان له شنو ځنګلونو، سمسورې ځمکې
په هر ځای کښې سړی لطف او خوند اخيستلی شی، ر ږل ګله په ځنګ
ور ننوځی، ګله د شنو فصلونو په منځ کښې زان وی ک
د غرونو او غونډيو په منځ تېر شی، په ځنګلونو کښې بيزو ګ
... لا ندی يا ند

ښار منظره ښکاره شوه او د ټېسن نه بهر به د کلیوالی ژوندون تماشه کېده له
په همدې تماشه او ننداره کښې دوړخې لمن په تو لېدو شوه، په ګاڼا تو
دماښام توره پرده وغوړېده، له نا ګامه ما هم د ډوډۍ خوړلو نه پس
په خپلو سترګو پرده راواچوله او په خپل سیټ کښې د خپل بالا پوش لاندې
پـر پو تم، په هو نیز شپه شوه، مګر په ریل د شپې و ورځې فرق نه ؤ، خلك پکښې
قول آرام پراته دي او دي سرګردان منځ په وړاندې روان دی، نزدې سهار ٦ بجې
سترګې وغړېدې، چه را پاڅېدو، د ریل هم ها غسې ګړ باخېږي او روان دی
ګاډی پوره پـه ٧ بجې د بمبۍ په آخـري ټېـن ودرېد، دېنه یا نو سر
سره کمیسو نه ښکاره شول، ګاډی دستر ګو په رپ کښې له خلکو تش شو
زه نابلده وم، درك راته نه معلومېده، د پرس د هـو ټل پـه نما یند
واوښتم او ور سره لاړم، چه هو ټل ته ورغلو ورو کی غوندې هو ټل ؤ، کمرې ئې
هم دومره اعلی نه وې، مګر له نا کامه پکښې پا ته شوم او په دې صوزن
د بمبۍ ښار د ښاز په ژبه دحسن او عشق سر زمین او د شعر او مو سیقۍ
ښار ته را ورسېدم .

افغانی قونسل خانه

عبدالمجید خان هم را پیداشو، پیژندګلی سره وشوه د قونسل خانې عمارت
(بالکشن رود) کښې د سمندر د غاړې سره نژدې د بمبۍ په لویدیځ کښې یو دو لو
ښایسته او وارت عمارت دی. د خوشحالۍ خبره وکښې داوه چه دا عمارت د کونس
خانې خپل ځای ؤ. لهٔ لږ ساعت ځنډ نه وروسته د ښاغلی شوکت سر
د سمندري جهاز د ټکټ اخیستلو ځای ته تلل را په غاړه شوو، هلته چه ور غ
د کمپنۍ ماموریں ښځې او نر په خپل کارو بار ډاسې بوخت و
چه د یو مسافر دلیدو فرصت ئې هم نه درلود، خیر، شوکت ور سره خبرې
شروع کړې، په نتیجه کښې په سختۍ سره معلوم مه شوه، چه دفر ور
په ۲۶ به د بصرې جهاز روانیږی او تاسې ته به پکښې ځای په لاس در ش
دپا سپورټ او د کولرا، ټیفوئید، دا نجکشن تصدیق ښود ل هم ضروري خبره و
دا کار چه وشو. نو د ټکټ پیسې موږ کړې او په خپلې کامیابۍ خوشحاله شوو
ځکــه چه د بصرې په لین سمندري جهازو نه لږځې راځي. خالی د یو
انګریزی کمپنۍ جهاز په هفته کښې یو ځل درومي چه لهٔ درې میاشتو ن
ورته خلك په انتظار ناست وی .

د فروری ۱۷ :

د بمبۍ غوندې لوی ښار کښې چه ټول عمارتونه او کوڅې ئې په یو شکل

دی کښته را کوز شو، بالکل نابلدی وه، د پښتونستان د تحریک کتا
چه خان غازی دده د پاره راکړی ؤ هغه مې ورکړ؛ خپل نوم مې ورته و
بیامې د عبدالشکور رشاد دځای پوښتنه تری وکړه، دی را سره په خ
په موټر کښې کښېناست او په (بیندی بازار) کښې د رشاد ځا
ته ورسېدو .

رشاد دقندهار یو ښه شاعر او بیدار ځلمی دی، درې کاله پخوا
۱۳۲۶ش کې هغه وخت چه زه د فراه د سیستان اخبار د تاسیس د پاره
قندهار تېرېدلم، دده سره مو اشنائی او لیدل کتل شوی ؤ !

دی په دغو ورځو کښې په بمبئی کښې د پښتون د شرکت نماینده ؤ، ده ته په بمبئ
کښې زما لیدل یوه نوې او دلچسپه خبره وه، یو ساعت مجلس مو وکړ اوبی
ور نه خپل هوټل ته لاړم .

د فروری ۱۸ :

حاج محمد خلیل دخبروانرو او مرکې په شوق دده ځای ته ورغلم، د(دونګری رود)
په (کلیان منشن) کښې د «انجمن پښتون» یوه تخته اسکېدلی وه
په بمبئی کښې دداسې تختې په لید و زما دخوشحالۍ څه اندازه نه وه، پاس

ر کن‌دي. ده‌وویل‌چه‌ددې‌انجمن‌دجوړ‌ېدو غرض دپښتنو انتظام، غمخوري،
وښتنه، امداد، ددوی‌دپاره کار روز گار پیدا کول ددوی د مړی ژوندی
غم خوړل اوداسې نوردی.
دې انجمن په‌دې لار کښی دېر کار کړی دی، او په‌بمبۍ کښی‌ئې ترډېرې
اندازې‌دپښتنو حالت‌ښه ساتلی‌دی.
حکیم تاج محمدپښتو دتالیفاتو په‌سلسله کښی‌هم‌ښه کار کړی دی، دپښتو
زده کړې کتابونه اوځینې نورئې چاپ کړی‌دی. او دپښتونستان‌په‌ایار کښی
هم کله نا کله‌لاس اوپښې‌خوځوی - په‌موجوده‌وخت. په‌بمبۍ کښی نږدې
لس زره‌پښتانه‌اوسی، دتاج محمدخان‌سره‌دپښتو دادبی‌خدمت او ترقۍ په‌بار
کښی‌خبرې‌اترې‌وشوې، ماده‌پام په پښتو کښی‌دادبي‌ېو والی کوشش
راوگرځاوه، ماورته وویل چه مونږ په افغانستان کښی دپښتو
دیومعیاری علمی‌سبك پیدا کولودپاره ډېر کار کړیدی‌اوتر ډېری اندازې
کامیاب شوی‌هم‌یو، ناسې لاهم یکاردی، چه‌په‌خپلو لیکنو کښی دې خوا ته
پام وکړی څکه چه وروسته نسل‌دې‌خبری‌ته ډېره اړه لری، او یکاردی
چه‌په دې‌وخت کښی‌چه د پښتونستان دجوړېدو کارشروع دی
لـه‌پښتوڅخه‌دلیك‌دوداو املا اختلافونه ووځی اودیووالی رنګ‌پیدا کړی

واخیستل، دسینما داخلي صحنه، هال، پورته او ښکته منزلونه ډېر ښایسته ا
ډوالي وو-برقي باډیکي د ګرمۍ دلیرې کولو دپاره په ډېره تېزۍ چورلېدل
دا فلم دشروع کېدونه اول ئې په هند کښې د ملاریا دماشو زېږنده، خطر
کې حملې دملاریا مریضان او دډاکټرانو فعالیتونه او کوشش چه دملار
دور کولو د پاره ئې کول ټول، وښودل او بیا اصل فلم شروع شو
هندي فلمونه زیات دعشق او محبت له داستانونو خالي نه وي، هند د « پریم
او مینې ملك دی. په دې فلم کښې هم په یوه هلك باندې د دو و جینکو د مینې
داستان په ډېروا غېزناکو پردو کښې ښودل شوی ؤ، دغسې ویرجنې (تراژدي
پردې دزړه په خاوندانو خامخا اثر کوي، څه لا څه چه دروح نواز موسیق
خوږې نغمې هم ورسره ملګرې وي، په دې فلم کښې « نرګس » لوی پاټ لوبو
دخوږو غږ اونو، رنګینو ناڅو نو په منځ کښې دمینې قصه لیدل او رېد
یو عجیب خوند او کیف اری-ددې خوند او کیف نه پس دسینما وخت پوره ش
چه بهر راووتو سینما راته دخوب لیده ښکاره شول-
هو! سینما یو خوب دی او دنیا یوه سینما ده.

## دنرګس تماشه

دفروري ۲۰:

دمازیګر په ٦ بجو مود « نرګس » دلیدو شوق وکړ، نرګس زما د پاره

يا يو دوه چينى پيغلې ميدان ته را ووتې، او دا سې نخرې پيغرې ئې و كړې
چه تعجب ور تــه كــوته پــه غــا ښې و نيو لــه، دغه شان په اسو نو، ها تيا نو،
مر يا نو، تو تيا نو ر نــګار نګ او بې وښو دلې شو ې، تو تيا نو په منو كه
كښې دهندو ستان جنده ديوې ونې ز ينې سر ته و خېژو له، يوو ونه ها تى
كمېدو په حالات كښې په اكې باندې دبيم با جې سره ډول و وا هه ـ
تمبو په منځ كښې وني وني جينكۍ لكه ښا پيرۍ و نځېدې ـ او رنګ ر نګ
نظرې وښو دلې شوې، ددرې ساعته چلېدو نه پس لو به ختمه شوه او هر څوك
پلو خپلو ځا يو ته لاړل

## هنګن ګاردن

دفر و رى ۲۳ :

زماد بمبۍ په تولو ور ځو كښې ددې ورځې ما زيګر ډېر رنګين او خو ندناك وو ـ
چه بجې ښاغلى عبدالرشيد په بمبۍ كښې دافغا ن ملى با نك مد ير راغى ـ
دهوا خورۍ په غرض په موټر كښې «هنګن ګاردن» ته لاړو دغه پورته
نوم ديو ډېر ښكلي ښايسته بــاغ نوم دى ـ چه دلندن دكوم شاهي باغ په نمو نه
وړ شوى دى ـ دبمبۍ دښار شمــال ته د سمندر غاړې ته نژدې دتورو ګټو يوه
زده غو نډۍ پر ته ده، ددې غو نډۍ دپاسه داو يوما لدار ا نو ښكلى، پې مخې
بار تو نه او ستر ې ما نې ...

روان وی. باغ د غونډۍ په منځ کښې په داسې شان پروت دی. چه د بمبۍ
د ټول ښار او د سمندر د شین ډنډ او چتو چپو ننداره له دې ځای نه د ښ
آسانه ده، د باغ ستاینه به څه وکړم؟! د جمال دنیا د ښایست جهان، د سرو او سپینو
ګلانو کاروان، د رنګ و بو قافلې، د شینکلو فرشونه، د رنګینۍ او ښک
پنه و نه. خدای د هم دې ځای په برخه کړی دی. مازیګر مهال چه د نم
زرینې پلوشې د سمندر د آبی رنګ په انعکاس کښې د دې باغ د سپینو سرو ګلا
په غېږ کښې خورې ورې پرېوځی. نو بیائې د سرو زرو ډېرانو سره فرق کو
ګران شی. په دې باغ کښې د سرو او سپینو ګلانو قصې د شین بخملي فر
دپاسه، د ونو د بوټو د لاندې د دوو مینانو دوستانو او ملګرو له خوا اورېد
کېږی، د ګل تر پاڼې نازک درا مېمل چا مېمل نه سپین ښمیادمان یا په ب
ژبه د سمندر د لیرو جزیرو ښاپېرۍ مازیګر مهال د دې بڼ په خوشبو
فضا کښې د خپل جمال نورانی پلوشې هرې خواته اونی. او عالمونه د خپ
ښایست په ننداره خړوبوی، دلته د جمال او ښکلا له مخ نه ټولې پردې لیرې شو
دی، دلته طبیعت خپل ټول جاه و جلال خپل ټول عظمت او شوکت، خپل ټول ښایس
او پی مخ توب را برسېره کړی دی، دلته د زړونو د مینې دروازې پرانستې دي
انګرېزان وائی. بمبی د محبت ښار دی. نیاز وائی د حسن او عش

ددې باغ په‌ښایسته کولو کښې دطبیعت نه‌علاوه دروزنې لاسونو هم خپل پور

کمال ښودلی دی، دلندن دیو باغوان په‌لاس هر وخت ددې باغ دبوټو، تنک

غوټیو روزنه‌او پالنه کېږی.

دکاغذونو، ګټو اوتېږو مجسمې به‌هر چا لیدلی وی- مګر دبوټو اوو

زمریان، هاتیان هوسۍ، آسونه دا یراځې په‌همدې باغ کښې موندل کېږ

چه‌په هر یو کښې دآرت اوصنعت کامل مثال هم دلته‌پیدا کېږی-زمامل‌ګر

وویل په‌دې باغ کښې دخورلسمې سپوږمۍ په‌شپه دېرمینان دمینې درسو

ګردانوی، دعشق کتابو نه‌ختموی اودحسن اوښایست په‌غېږ کښې د خپ

لطیفو احساساتو اوجذباتو سره لوبې کوی.

ددې باغ سهر اومازیګر بلکه‌ټول وختونه دښایست او جمال یولو

ننداره‌تون دی-دباغ په‌سویلی اړخ کښې دښینو په‌شان صاف روڼ یوه ورو ک

درې منزله «کافی» هم داسې ښایسته بر ښې لکه‌دیوې ښکلې پیغلې په‌غوږ کښ

دسروزرو والی-یوه‌بېرۍ ده «هنګن ګاردن» دادسروزرو والی د یو لطی

جنس له‌خواجوړه‌شوې ده-چه‌مېرمن «ناز» نومېږی اوپه‌اصل کښې پارسنه د

قدرت ددې ځای دپاره‌یوداسې نوم را پیدا کړی دی، چه د فکر خا و

نسیم تار تار خوریږی . د « ناز کافی » ددریم اوچت بام نه دبمبۍ د تول
ننداره دستر کو درپ کاردی، دسمندر بی سروبره چپې دهواد
لا ندې غرو نه غرو نه ښکاری. دریابی مارغان ، دسمندر د پاسه هوا
لکه سپینې پاغوندې لاندې باندې کېږی، کله په سمندر ورغوپه شی- کله
بیا هوا ته جګ شی ،دوی سر ددې- چه دبمبۍ دښار دښایست ننداره په ستر
وینی ،مګر له خپل دریابی کور نه یو ساعت هم- نه جدا کېږی ، د « نا ز کا ف
مـا ز یګری ، دبمبۍ د ښا ر د ښایست ننداره ، د « میر ین ډ را ی
اکه ښایسته اوزیـ کښ ه غاړه ، دسمندر هوا ، ددریاب دچپو مدو جز ر ، تیتېدل
هسکېدل ربښتیا یوه نوې دنیا ، یو نوی عالم او یو نوی جهان دی ، ددې طبیعی
او فطری منظرې دستاینلو اورسم کولو دپاره دډیرو الفاظو ضرورت دی
دما سره نور کلمات خلاص شول ، نو ددغه رنګین منظر نه را اولاړ شوو او د « هاج
دفلم دلیدو دپاره دبمبۍ ښایست په یو بل باغ ور کډ شوو -دا ته دباغ تر
نازک او ښایسته انسانان دچو کیو دپاسه دفلم په ننداره بوخت وو ، هلته په
کښی د « نر ګس » داؤدی نغمو او سپینې و یلې کو اې .( نر ګس )
(دلیپ کمار ) ددې فلم ښا بسته او ښغا ړوله ور کو قوالی نه دعشق داستـ
شروع کړ ، ددوی دمینې او محبت بو قې ورو ورو او ښېده ، غټېده ، پا نوې
کو اې ، کله به دهجر خزان رژولی کله بـه دو صال پسرلی را تو کو لی

یـوه جینی پري مینه شوه، کورته ئې بوت ـ هغې ورسره محبت کاوه، اودد
زړه په کور کښې دبلې مینتې ځای نه ؤ ـ دنر گس مینې پري لاپه ور کوتوالی
کښې قبضه کړی وه هغې دزور مینه غوښتله، آخرئې خپل بل یارته و ویل
چه داهلك روژ نه ځکه چه په ژوندزماسره مینه نه کوی ، زه غواړم دد
مړی سره محبت و کړم ـ قصه اوږده ـ ده دغه سخت زړی رقیب دده د مر
تړون و کړ . دجګړې په وخت کښې دغه اجل نیو لې جینی منځ ته را غله
په گوای والګېده ـ دعـوه په دلیپ کمار و شوه ـ او دی بندی شو . دېرې سختی
ورې تېرې شوې، کوم وخت چه خلاص شو ـ نر گس ئې یو ځل نیم و لیده ـ خو
دعمر ځوانی تېره وه ـ بې دژړا افسوس نه بل څه نه ؤ ـ دېرې غمجنې پر د ې
ښکته پورته شوې اودمینې دغه غمجن داستان دېر تمـاشګیر و در د ول
په هند کښې دفلم سازی او سینما گانو اصلی مرکز بمبۍ ـ دنر گس و ینا
جیشری، دلیپ کمار ـ کـکو او نور لو بغاړی چه دهند دفلم سازۍ په آسما ن
کښې دځلا ند وستورو مثال لري ـ دبمبۍ په نرمه پسته هوا کښې دمو سیقی
ه نغمو سخت زړو نه نرموی ـ وایی چه دلیپ کمار دپېښور یو ځلمی دی ـ اصل
نوم ئې محمدیوسف دی او نن په بمبۍ کښې یو نومیا ای لو بغاړی دی ،
ککو درقص ملکې په دې فلم کښې لوی رول لو بولی دی ـ سینما ختمه شوه
و دنبا یست د مرغلرو امېل و شلېد .

پروت دی، سمندر دریاب له دوارو خواو نه په غېږ کښې نیولی دی- د سمندر په غا...
غاړه ښکلې ماڼۍ لوی لوی عمارتونه او ښکلې واټونه ددې ښار په ښایست...
کښې ډېره برخه لري .

بمبۍ دودانۍ په لحاظ د مشرق یو لوی پی مخی ښار گڼل کېږي- عمارتونه...
زیات پنځه پوړه او شپږ پوړه دي- تر دې چه اوه چتیزه ماڼۍ هم پکښې شته...
دبمبۍ په عمارتونو کښې دښایست او لویۍ دواړه منظرې لیدل کېږي...
سړکونه او واټونه کافی ارت پاخه او صفا دي- د موټرو، گاډو، ترامونو...
تګ راتګ پکښې زښت ډېر دی . د ترامونو او سړو یسونو انتظام ئې ډ...
اعلی دی ، ترامونه په برق چلېږي، د سړکونو د پاسه د برېښنا مزي یو خو...
بل خوا زغلېدلی دی - په بمبۍ کښې هر شی ډبل یعنی دوه دونه لیدل کېږي...
د ترامونو ډبې دوه په یو بل پسې نښتي- سرو بسونه عموماً دوه چته دي...
یعنی لاندې او پاس پوشان سیټونه لري- چه خلك په زینو ور خېژي...
د ترامونو او بسونو کرایه ډېره ارزانه او د ښار دخلکو د تګ راتګ...
دپاره یوه لویه اسانتیا ده- سړی پکښې په یوه آنه دوه آنې تر څلور میله...
پورې گرځېدی شي- لاکن نابلده سړي ترې فایده نشي اخیستی- ځکه چه...
دځایونو پېژندل پکښې ډېر مشکل دي. مگر کرایي موټرونه او گاډي...
په دغومره ځای کښې دوه دري روپۍ اخلي، په ټکسي موټرونو کښې دحسا...

رد اغاطي بې دسمو اخلاقو نه بل شي نشي ليري كولاى .په بمبي کښې دخلکو
و يه مشغولا تجارت، دکانداري اومزدوري دبمبي دنړۍ تجارت يولوى
مركزدى-دهوائى سمندري جهازو نو جلا جلا کمپنۍ او د بر بنکو نه
وشر کتونه پکښې کار کوى .دخلکو پـه ژوندانه کښې اروپا ئې او هندى
تهذيب او رسم ورواج ، كدود ليدل کېږي مگر تعليمافته او مالدار ه طبقه
خو بلکل داروپائى تهذيب په خم کښې له سر نه تر پښو پورې رنـګ شوې ده .
په هوټلونو کښې دوه قسمه خوراك اروپائى او هندي رواج دى، ځينې هوټلونه
خالص اروپائى او ځينې خالص هندي خوراك ور كوى «تاج محل» دبمبي
تر ټولو مشهور اولوى هوټل دى، د «۲٤» ساعتو باره ئې «۵۰» كلدارې ده
د بمبي خلك د تفريح ، هوا خورې د پر شو قمن دى ، هرماز يگرد مر ين
دراى ، اپولو سمندري غاړه لـه ښځو او نرو څخه د کـه ښکـا رى
دښايست په لحاظ دبمبي ټول سينگار په پارسيا نو برابر دى ، دوى له رنـګه
سپين او يه و نه اوقد كښې هم جگ دى، ښکلې نرى لباس د دوى د تن
نو ر لانور هم زيانوى، «چوپاټى» دخلكو دجلسو او ټولېدو ځـاى دى
نياز فتح پورى د «اپولو» او «چوپاټى» په ياد دقلم په مزى د پرى مرغلرى
پېيلى دى-حامدا نصارى چه پښتو ادبجنور دمدينې نومى اخبار مدير ؤ او او س
په بمبي کښې د «جمهوريت» مدير دى، يو وخت بمبي ته راغلې ؤ نوخپل

رادیب دزړه رباب په زیرو بم راوستی دی'او ددې ځای دستا ینې او نما نځنې
څخه په غیر روغ زړه واپس نه دی تللی. زه په بمبئ. کښی د دې خبرې اور ید و
د پر په تعجب کښی واچولم ' چه علامه شبلی نعمانی هم په بمبئ کښی
ړه بایللی ؤ او دیوې عالیه بیگم نومې پارسنې دمینې په کټارو ژوبل شوی ؤ.
هو! دحسن او عشق دیرغل په مقابل کښی هیڅ طا قت'هیڅ لښکر ' هیڅ
ادشا ه ا و هیڅ پارسا مقاومت نشی کولای .
دبمبئ د یومازیگری گرځیدو په وخت کښی زه او رشا د په ا د بی
حث کښیو تو ماورته وویل دبمبئ مثال دداسې کاغذ ی چه یو مخ ئې
راوبل ئې سپین دی. په لارو کښی مخامخ په یوه وخت کښی هم « ا نقباض »
ار و ا ن و ی ا و هم ا نبسا ط ' چه د یو د معنی تو ر و ا لی او د بل
عنی سپین و ا لی د ی . د حقیقت دغر گـنند ید و په د ې عصر کـښی
وس هم ډیر خلک په فطر ت ـ کـا ینا تو ا و د ز ړ ه په آ ر ز و گا نو
رده اچـو ل غـوا ړ ی یا په بله ژبه ریا کـا ر ی کول دځان صفت بو لی
دحسن اوجمال دلمر په مقا بل کښې تول شیان لکه ذرې او بڅری ر پیږی'
ر زیړ ی اوځان دهغه دجاذبې له ځنځیر څخه نشی خلاصولای'خو په ظاهرور ته
دې حقـیقت منل تر خه معلو میږ ی په د ې بحث کښی ما ر شـا د تـه

خلك هم له ځان سره شريكول دتوانيي اوسړی توب لومړی فرض بولی
هغه د دنياله رنګينونه پټې سترګې تېر بدل خوب اومرګ ګڼي، نوهغ
په‌خپلو ليد نو كتنوپرده نه‌اچوی اونور خلك كوښښ كوی چه همېش
دريا كاری اوتېروېستنې ثادر په‌ځان واچوی.ما زيګر مهال د(انډ
ګېټ)په‌خوا كښې دتاج محل دجګو منارو تر څنګ د بمبی د خليج
دغاړې ننداره‌دانسان دستر ګو دوړاندې دخوندونواورنګينونو بل‌جهان
جوړوی،په‌دې وخت كښې دنمرطلائي ځلېدونكې پلوشې دساحل په ښو
تربو ځی اودآخري احترام رسم په‌ځای كوی.بله خو اوړې وړې كشتۍ
دماشين، باد بادوان باد چاله‌وان دچپو په قوت دسمندر دچپو سره غېږ
په‌غېږ دتوروبې پايانه‌اوبود پاسه لكه داو بو كبان ياد تنستې ما كوان
زغلي رازغلي، لوېې لوېې بېړې له‌اوږدمزل نه ستړې ستومانه په خپل
ر يابی كور كښې ولاړې ښكاری اووړې كشتۍ ددريا بی‌ماهيانو پشان
يوه خوا بله خوا منډې‌را منډې وهي - په‌دې كشتيو كښې پېغلې او ځلمي
سمندر دچپودننداري‌دپاره سورېږي،په‌سرئې سپين وزري‌ښايسته‌مرغا ن
جوړانكونه خوري؛ ماهيان وړته دسمندرله‌تل نه سرونه راوباسي
و ديو بل ننداره‌دخپل‌ژوندانه دخوږووختونو خوندنا كه شېبه‌بولي
دي رنګينی اودد ی خوند اومزي سهی رسم كول دقلم او الفاظو ل

اوه ! همد غه وخت چه دماښام په برقو نوا و بر ېښناؤ ځليد و نکی سمندري
غاړ ی څخه سرې دبازار خوا ته راوچاروزي او په شا تنيو کوڅو کښې دغريبا نو
وزو بربنډو بې اسرې ژوند و ګورې نو هغه ټول خوند و نه ئې هېرشی ا
ددې رازپه پوهېد لو کښې له ځان اوجهان نه بې خبره دحیرت په سمندر
کښې لاهواوډوب شي .
ژوندون اوپه ژوندانه کښې هرشی دوه مخونه، دوه اړ خونه او د و
رنګونه لری ښه او بد، تورا و سپين، خوند او بې خوندی، غم اوخوشحا لی
دغه ده دبمبی یوه وړه منظره، بلکه همدا د ټولی دنیا او ټول ژ و ند و ر
دصحنې اصلی رنګ او اصلی شکل دی. ددې حالت اومنظر ې تصو یر په بو
ښتو لندی کښې د پرښه شوی دی .
دا نمرزير ی وخت ما ژ یګر دی په چا اختر دی څوك دغم ژړا کوی

## هندته یوه وړوستۍ کتنه

د هندوستان غوندې بې حسا به لوی ملك چه دزمانې پاچاهان، سیاحین پکښې
له پښو لوېدلی دی او قلمو نه ئې وچ شوید ی په دومره لږ موده کښې مطا لع
کول یوه ګرانه معمی ده؛ زه په خپلو لنډو لیدنو کتنو کښې د هندوستا ن
د ټولو څیزونو نظاره وړاندی کول د خپل وس نه بهر بو لم ، ز ما کتنې

مو نږ بنګال ته لاړو مګر د «ټیګور» د نغمو دبستان یا د توتیانو باغ
و بڼ «شانتی نیکتیان» موونه لیدی شو، د «بنګلور» منظري مو
دسترګو په کمره کښې را نه ؤستی شوې. دشعروا د بذوق او جوش مرکز
«لکهنو» رانه په ارمان کښې پاته شو. دراجپوتو درنګینوافسانو وطن، دآله آباد
علمی اکاډیمی، دعلیګړ یونیورسټی، داحمدآباد او حیدرآباد پښتانه
او داسې نور ډېر شیان مو دنا پېژندګلی د پردې لاندې پرېښودل خو بیا هم
دخپلو تنګو لنډو لیدنو کتنو انعکاس چه زما د دماغ په پرده پرېوتی دی
په لاندې کرښو کښې ښکاره کول غواړم.

د هند دلویو ښارونو ډیلی، کلکتې، بمبئ له کتنې څخه معلومه
شو، چه په تعلیم یافته طبقه کښې کافی بیداري پیداشوې ده، په دوی کښې
دملیت او وطنیت روح د ګاندهي او نورو د تلقیناتو په اثر ښه نښتی دی
دهند په آزادۍ او جمهوریت فخر کول خپل غرض ګڼي، دوطن دلوړتیا
ترقۍ، ودانۍ او دپردوله احتیاج څخه ځان خلاصولو او په خپلو پښو
د درېدو دپاره کافي هڅه کوي.

هندوان زیات نه زیات اقتصادي خلك دي، دتجارت اوسودا ګری
په کار کښې له پخوانه هم مخکښې وو، او اوس خوئې لا د آزادۍ
نشه هم ورلیده. دپیسو ګټلو فکر د لوی وړوکي په دماغ

په بازارونو کښې له اخیستلو څخه وتلی دی، د زراعت د ترقۍ د پاره نو
سکیمونه جوړ شوی او په کار اچول شوی دی.

دسیاست په میدان کښې هم د هند مشران خپل موقعیت او چتو
او د ایشیا د لیډرۍ بیرغ په خپلو اوږو پورته کول غواړي- لاکن د دې خو
معنی د نوې شپږ سوه ملیونی چین دوښېدو او ژوندی کېدو په
ددوی د آرزو مطابق نه معلومېږی. په هند وانو کښې د خپلو زړو رواجو
او عادتونو د بدلولو خیال پیداشوی دی او غواړي چه لو نوته هم د میرا
حق ور کړی شي، د ښځتن د مرګ نه وروسته د ښځتن کولو حق و لر
او داسې نور. مګر سره د دې زاړه پنډتان هم په کښې شته چه دا کار و
د خپل مذهب څخه مخالف بولي او ډېر کسان ئې په ځان پسې در ولی دی

په هند کښې د خوراك مسئله تر هر څه مشکله ده، خلك بېحسابه
او د غذا پیداوار په اندازه دی، په ښارونو کښې د ځرې د کمی د لاسه کا
شکایت موجود دی خو د دې اور تاو بوا ځی د غریبانو خیټه و نه ر سېږ
مالدارانو ته په کاله دننه هر څه پیدا کېږی، د اجتماع او ګډون په بر
کښې پخوانی رنګ او زوړ تهذیب لا هاغسې لیدل کېږي دیو مسا ف
نا آشنا سره د خلکو اختلاط او ګډون کم دی، یو نا بلد سړی په لو

ه گډون دی ،مګر نوې طبقه او پوه سياسی خلك له دې مرض نه خلاص شوی
دی ، په دوی کښې د نورو مذهبو نو د خلاف جذبه هم نه ليدل کيږی ،مګر زاړه
ندوان د تنګ نظرۍ په بلا اخته دی.

په هند کښې هره ورځ لامبل دلويو وړو عادت دی ، او که سړی هره
ورځ دوه کيلنه او به په ځان وانه ړ وی ، نو ګند ور ځنې جوړ يږی .
ګرمۍ او خولې په وجه پ کښې جامو و ښځلو او بدلو لو ته هم ډېر ضرورت
پيښيږی ، ددو بيانو خواری مزدورۍ پ کښې ډيره ده ، جامې پ کښې زر زر
ميلېږی او زړ يږی ،مګر دخدای فضل دادی چه ددې خلکو لباس ډير آسان
و په يو کميس او يو لنګ باندې خبره فيصله کيږی .

په هند کښې د پان استعمال له سګرټو څخه هم زيات دی ، روزمره ديو ې
نې پان خوړل د هرچا عمل دی - دوی وايی چه پان غاښو نه ټينګوی
و له صفا کوی او ډوډۍ هم هضموی ، ځکه چه نه پ کښې ډيره
جوی ، د اخبره ې به سمې وی مګر ما چه وليدل نو د پان والاؤ غاښو نه زيات
ينجوو هلی سوايدلی ، خيرن شوی او بې ډوله ښکاری .

په هند کښې دعينکو استعمال او هغه هم په ښځو کښې ډير دی ،
ښارو نو کښې نږدې په سلو کښې د پرش څلو ينبت ، دچشمو په قوت ګرځی
ګرځی ،مادی يو سړی څخه ددې وجه و پوښتله ، ده و يل چه علت ئې دغذا

په هند کښې دعسکرو اوماموړينو صحت دعامو خلکو له صحت څخه د ډېر ف
لـــري ، غالباً داده، چه دوی ته ښه غذا، سبزی، دژوندون ښدو بس ئې ښه د
سپـورت ـ ور زش اودرو غتيا داصولو مراعات پوره کوی .

## دروانېدو ورځ

دفروری ـ ۲۶،۲۷، ۲۸:

دسمندری جهاز ټکټ خومخکښې اخيستل شوی ؤ، مگر په دې ورځ بل
کـــار د« سی ، ای ، ډی » له دفتر څخه دتللو اجازه اخيستل وو، چه ورغلو خبر
څانگې او ښا خو نه پيدا کړی وو ، اوس نو قصه واوریء:

په ډيلی کښې ما دروانېدو نه اول دقانونی مجبوريت له کبله خپل پاسپوړ ر
دخان غازی کابلی په لاس د« سی ، ای ، ډی » دفتر ته واستوه، ددغه دفتر کاريگ
يا په غلطۍ يا ناغلطۍ کښې د« رجسټريشن » په شا اهانه يا څخه زمادو تلو د يا
درې ورځې تا کلـــی و ې کــار خو نېمگړی ؤ مـگر دخان غازی احسان په ما پ
وا ور ېد، پاسپورټ دښاغلی گران په ذريعه دښاغلی بابر په لاس د« سی ، ای ، ډی
دفتر ته بيا ولېږل شو چه دغه درې ورځـــی زياتې کړی او لږ تر لږه اس ور ځی نې
پکښې وليکی داخل پاسپوړټ د« کينسل » سره واپس راغی، يعنی په ځای ددې
هغه درې ورځې نېټه زياته کړی شوی وه، ای هغه درې ورځې هم « کينسل »

... سودائی او شکمن لقب را باندی کښېنښردی مګر په بمبۍ کښې زما سودائی تو...
... ر شتیا شو دوه ورځې مخکښې چه ښاغلی شوکت زما پاسپورټ د بمبۍ ...
... د «سی،ای-ډی» دفتر ته وړی ؤ هغوی د ډیلی په (کینسل) کولو اعتراض...
... درلوداو په دې وجه ئې ډیلی ته تارورکړی ؤ؛ عجیبه لاداوه چه د تار پیسې ...
... ور کول هم زما په غاړه وو.

... زه او شوکت په یو دفتر او بل دفتر کښې ګرځېدو نه چرته د کښېناستو ځای ...
... او نه د خلاصېدو. خبره پولیس انسپکټر ته ورسېده ښه وه دده ...
... ګوته کښې مو د کښېناستو ځای ومونده لاکن بدقسمتی داوه چه دد فتر ...
... با بو ګانو ځخه کاغذونه ورك شوی وو ښایسته وخت ډېر تېر شو ترخو چه ...
... هغه پیداشول خیر په هر صورت پس له ډېرو قال و قیل نه جو ځخه دوی راضی شو ...
... او درجسټرېشن په شائې د بمبۍ را وهند ځخه دوتلو اجازه وکړه.

... له دې جنجال نه موچه ځان وزګار کړ نو په درې بجې مو ځان «بوری» بندر ...
... ورساوه ښاغلی رشاد او حاجی فدا محمد قندهاری هم د «مخه ښې» دپاره راغلی ...
... په بندر کښې دخلکو ګڼه ګونه هجوم شراوشور دومره زیات ؤ چه نابلده ...
... خو په کښې بېخی رو ګودر نشو پیدا کولای د دې ځای ګڼې ګونې اواز د حمام ...
... ریل د ټېشنو نو اوهوائی میدانو نو ګڼه ګونه هیره کړ. په دې ځای کښې د مسافرا...

ورګډشوم.

## د بمبۍ په خلیج کښې

بمبۍ یوه جزیره غونې ده، سمندر ترې پره‌حده په وچه کښې ننوتی دی، نو په د
وجه د بمبۍ د ساحل ماز یګر ډیر رنګین او مزه ناک دی، هم دغه ماز یګر او هم د
د کیفو نو ډك وخت دی، مسافر له یو بل نه نا خبره په خپل غم کښې ډوب دی.
څو کسان مان را چلوی څوك په جهاز کښې خپ
ځای او کوټه لټوی، څوك د سمندر په غاړه د خپلو دوستانو
او خپلوانو د آخری لیدلو او خبرو شخه خوندو نه اخلی، زه له دې قصو
خلاص وم، نه د چا ښېلتون ژړولم او نه د چا د وصال سودا را سره وه. البته
د نورو د ښېلتون منظره مزه نا که وه. له یوې خوا نه د خندا آواز را
او له بلې خوا نه د ژړا غږ او ریدې شو، د بمبۍ د بندر نه «دریسا» نومی جها
روانېده او د لطیف جنس لسترګو نه، د اوښکو مرغلرې تویېدې.

سرې سرې اوښکې دې په مخ عبدالقادره
خوږ آشنا ته دیا قوتو مهمانی ده

نژدې شپېږ بجې وې، چه جهاز د روانېد و چیغه یادهاتی غوندې رمبا
وښکله، د جهاز د خلکو سترګې ساحل ته او د ساحل د خلکو سترګې

دجدایی خلیج پیداشو، مونږ دجهاز دبرنډې نه دماز یگر د زیړی نمر د زرین
پلو شو په د رزونو کښې د بمبۍ. د ښایسته غاړې او د تاج محل او اپو
دښکلا وروستۍ ننداره وکړه او چې په خوله ئې د رخصتېدو اجازه را کړه
سمندر ځپلو تږلو مېلمنو ته دیخې هوا سوغات ورانديې کړاو په ځپله سینه ئ
جهازته د تلو لار ورکړه، د سمندر دلویو چپو توروا وبو او تېزو باد و
سره اشنا ېېږی ساعت په ساعت تېزېداه، د جهاز وان نظر دسمندر په لو
محیط کښې په سمندری لار ښتی ؤ او د جهاز سور لیو لا هغسې د برښ
په ستورو ځلانده غاړې نه آخری لطف او خوند اخیست.

او ه ... ماد هوا نه دبمبۍ د برښنا ګانو ننداره کړې وه او خیال مې ګا
چه دا کیف به بیا پیدا نشی، مګر د دریاب له منځ، د جهاز له برنډې
د بمبۍ د کېږې و ږې ښکلې غاړې ننداره چه د برقونو او برښنا ګا
هار ئې له غاړې تاو کړی ؤ، څه بل شان خوندور منظرؤ، تا به وې د دریا
په اوبو یا دبمبۍ په ساحل اور لګېدلی دی، په دې وخت کښې راته د پښت
په ساده ګودر کښې د یوې پېغلې دسور سالو لنډۍ را یاده شوه.

له پاسه سور سالو ښکاره شو        که د ګودر په اوبو اور لګېد
مګر توپیر دادی، چه د بمبۍ په ساحل باندې د برقونو اور لګېدلی ؤ
او د پښتنو په ګودر باندې له سور سالو څخه لګېږی.

د بمبېړ د غازي په برابر د يوې نيمې دا يرې په‌شکل منزل و کړمګر، سر
دي هم دبمبېړ دبرقونو نيا ښکاريده، پـه‌تېـر ه د سمـند ر ثاى ر نيا
وستونکي ګروپ خوتر ډېره پورې ستر ګکو ته و هل ، پس له دي د تور
او بو دپاسه دتورې‌شپې پرده هم وغوړېده ، خلك په‌خپلوځايو کښې آرا
پر يوتل او جهاز داقبال ددې شعر زمزمه شروع کړه .

بدر يا غلط و بامرجش در آويز

حيات جاويدان اندر ، ستيزا ست

دجها ز په زړه کښې دتيرې شپې اودسمندر دڅپو او ګردابونو هيبت
و پره نه وه، دسمندر دڅپو سره غېږ په‌غېږ مخ په وړاندې روان ؤ، سمند
که‌هرڅو مره‌هيبتناك‌او دخداى يوه لو يـه هستي‌ده، خو بيا هم دانسا ن
دشرافت مقام ته يې دتابعدارۍ‌سر ښکته‌دى د سمندر لېزه سر کشى‌اودبا
لېز غونډې‌طوفان عالمونه غر قولاى شي ، مګر د « سخر لکم البحر
فرمان ته ئې غاړه ايښې ده اوپه نرمه غاړه دانسانا نود رو ند با ر
په‌اوږ ووړ ى .

که مونږ دجهاز په پستو کټونو او نرمو توشکونو کښې ډوډ و کتو
دخا نګوپشان خوب نه خوند اخيست، نوجهاز په توره شپه کښې د سمند
سينه‌څيره له‌اودپايښت دجګړې په ميدان کښې ګړندى‌روان ؤ -

دنمر ککوړی خپل نورانی مخ راخر گنند کړ، نومونږ دجهاز پر ننه ي
ته وختو ــ دطلوع او غروب وخت له شاعرانه کیفو نو څخه ډك وخت دی
په تېره بیا د سمندر طلوع او غروب په دغو دواړو وختو نو کښې دنمر ککوړی
په سمندر کښې داوریوه لمبه، یا تکه سره تامبه او یا سره کړۍ او سپینه
ښکاری، په دې وختو نو کښی له یوې خوا د سمندر داوبو دیاسه دسرو زرو
او پاشې کېږی او له بلې خوا د ځلېد و نکو پلو شو پلن نو ا
دنمراو نظر تر منځ غزېدلی بریښی، او د سمندر تورې او به د نمر
دوړانگو لاندې داسې پړ کېږی لکه دصافو ښېښو بخری یا د الماسو ذرې

د فروری ۲۷: تاریخ په همدې شان د سمندر په منځ کښې تېر شو
او د فروری په ۲۸ سهار او ه نیمې بجې یعنی له بمبۍ نه تقریبا په « ۳۷
ساعته کښې کراچۍ بندر ته ورسېدو.

کراچی بندر

په دې بندر کښې د خلکو گڼه گوڼه ډېره وه، شل دوه ویشت جهازو نه
په بندر کښی ولاړ وو، د بندر غاړه د بمبۍ غوندې پخه نه وه ــ یوا ځې د دریاب
په غاړو دا و سپنې په ستنو دلر گو تختې پر تې وې ــ او په غاړه پاندې د یونوي
جرثقیل په واسطه ما لو نه له جهاز نه کوزېدل او پورته کېدل. د جهاز د زینې

و او ی لوی عمارتونه چه چاپیدلی وی، نو په دې ځای به ضرور دیو و ډ و کې
کلی خیال کوی، مګر واقعه داوه چه دا ځای اوس د یو مملکت پایتخت
و لوی بندر ګرځیدلی دی. په هند کښی چه د لیاسو نو کو م
یات فرق لید ل کېده، هغه دلته کمشوی ؤ - د بندر په غاړه د اړو پاڅی
ښشن ښځې کښته پورته ګرځېدې او زده عربی کمیسونه او چترۍ و اې
بور کې هم دیوې نیمې په سروی، مګر مخو نه ګاملاً اوښووه، جهاز ته
یوه ښځه او یوه پېغله راوختلې دیوه مامورنه چاپوښتنه وکړه چه دا څوك دی
ده وویل: د ګمرك افسرانی دی، له خلکو نه محصول اخلی، زه اریا ن
شوم چه د جهاز سالون ته لاړم، ګورم چه د جهاز دیو انګریز سره په ګپشپ
بوختی وې، د جمال هرو شی بازار ئې ګرم کړی ؤاو داسې معلومېده چه
د جمال او ښا یست سودا ګری کوی.

د کراچۍ په بندر کښی ځینی پښتانه هم کښته پورته ګرځېدل
دد وی کارجو الی توب او مالونه خېړولاو کوزول وو، دد وی د خیا ل
شملې د کراچۍ باد نېغېدو ته نه پرېښو دې - زېړ ز یلی، په بدحالت
پرېشان او په جوالی توب پسې سرګرداښکاریدل - ما له ځان سره وویل
چه ګوره دا هغه پښتانه دی، چه د کراچۍ راډیو او مهرخان همیشه ددوی
د ښه حالت او خوشحالۍ چیغی سورې وهی. رښتیا ئې ویلی دی: « شنیده کی

م سم نه ؤ، دي کوږ ووږ، بې تناسبه ځناور دغه کراچۍ راښکله، مونږ
و نور خلک ئې تماشې ته اريان ولاړوو، په دې اتو مې عصر کښې د ۱۷ قرن
غسې يو شي ضرور دخلکو دحيرانۍ سبب کېږي

دا ځناور به موته وې پېژندلی۔ دا هغه ځناور دی چه چاورته وويل غږی
دي کېږه ده، ده وويل: «کوم ځاي مې سم دي چه بيا ته مې غږی
فاعتبروا يا اولی الابصار» زمونږ د جهاز نه په کراچۍ کښې ځينې مالونه
وخلك کوزاو نور مالونه اوسو، ايږورته راوختلې؛ جهاز په کراچۍ کښې
ږ «۱۱» ساعته ځنډ په پس د مازيګر په «شپږ نيمو بجو د کراچۍ
ندر کراچۍ وانا نوته ور ننوت او دی دسمندر دڅپو سره غاړه غړۍ مخ په
ګوادر» روان شو.

## ګوادر

مونږ د پښتونستان د نامه نه وروسته د ګوادر نوم هم نږدې
ور بدلی ؤ، او د ګوادر دخيالاتو په څپو کښې له دوه کاله راهيسې غرق وو
آخر مو هغه ځاي دسمندر له لارې وليد، ګوادر د بلوچستان په سويل
سمندر پر پراته کې ديوې وړې علاقې او بندر نوم دی، خلک ئې بلوڅ دي
ه مګر دمسقط دسلطان داثر او حکم لاندې دی.

اوجا له وا نان له رنګه تو ربخون اوپه کړو وړو کښي پښتنو ته ورنه دي
دنارینه ؤ کمیس پرتوګ ئې دپېښاور دخلکو غوندې ؤ' دښځو په پوزه ئ
چارګل' دسپینو باهوګان د غوږ والۍ ئې هم د پښتنو په ډول وي
دیو کوچني هلك په غاړه کښي د کوچیانو ور ښمین ګنډ ی او په پښ
کښي ئې تورپرتوګ هم ولیدی شو

دګوادر خلکو چه په جهاز کښي خپل کار ختم کړ' او بیا ئې په ګډه ډ
او ډو لکي وهلو شروع وکړه' دا منظره هم کټ مټ د پښتنو له رسم ورو ا
سره برابره وه' کوم وخت چه په خپله جاله کښي سواره شول' هم دغه حال ئ
جوړ کړی ؤ -

دوی په خپل منځ ئې په بلوڅی ژبه غږېدل' چه پښتو' فارسي او ار
کلمات پکښي او ر ېدل کېدل' په بلوچي ژبه کښي د دغو در ېوا ړو ژ
الفاظ شته' لیکن د پښتو سره د ډېر قدیمي ارتباط لري او بلوچي هم د افغانستا
دمرکزي آریائي ژبو په لړ کښي داخلېږي .

زمونږ جهاز ته دمسقط دسلطان دریتنه پېره داران عسکر هم راغلي وو' دو
دربواړو وز دي زیري دراېږدي' عربي اوزد کمیس ئې اغوستی ؤ' اه ر
یو د سمال او چلتار د «وږغنو یږی» تاو کړی ؤ' له ملانه ئې کړ دن
تر لې وي' د عربو کمزی کتاري او بولس ډنډی زور ټوبلك وي سره

ښکاره دا کټر معلومېده مګر ګمان کووم چه په باطن کښې د ګوادر اداره چې

زمونږ جهاز په ګوادر کښې له (٤) ساعته ځنډه نه پس په شلو ر نيمې بجې

د مسقط په لور و خوځېد

مسقط

ګوادر د خليج فارس خوله ده - له دې ځای نه پس جهاز د خليج فارس په او

کښې « ننوځی - د خليج فارس ځينې بندرونه لکه بندر عباس ، بوشهر ، شاه پو

آبادان د خليج په شرقي غاړه او ځينې نور لکه مسقط ، دوبی ، بحرين ، کو يت

په غربي غاړه پراته دي ، نو له دې کبله جهاز په خليج فارس کښې

لکه د مار ناوړ اتاو حرکت کوی ، کله د شرقي غاړې بندر ته ځان و کاږ

او کله بيا د غربي غاړې بندر ته ځان رسوی - زمونږ جهاز چه د ګوادر نه

وخوځېد ، نو تقريباً په ١٦ ساعته کښې د مارچ په دوهم سهار ته نيمې بجې

د مسقط په بندر کښې ودرېد - کښتۍ را وزغلېدې او د مالونو کوزېدل او خت

شروع شول.

د مسقط ، دودانيو او سپېڅو ماڼيو ننداره مو له ليرې نه وکړه ، ودانۍ

ډېرې معلومېدې - په تېره د سلطان ماڼۍ چه د سمندر په غاړه ده او

سپېره غرو په خوا کښې جوړه شوې وه - د بره ځلاند ه بربنبده ، د دغه غره

کښې ليچو نو او ... نو کښې نور عمارتونه هم لږ ورا يه ښکارېدل - چه ځينې ځايو

اقتصادی چار و واك اختیار ئې دا نګریزانو په لاس کښې دی- او ددو ی
ایتهیکل ایجنټ یکښې دمشاور کار کوی-په مسقط کښې خارجی ما لو نه
زان دی، ولې چه نېغ په نېغه له لندن څخه را ځـی او په دې و جه خلك
انګریزانو ثناخوان دی . دوی دخوړلو څکلو نه پرته دنو ر څه سر
کار نه لري، کله چه یو انګریزی جهاز بندر ته راورسېږی؛ نو په دو ی
خترشی-ځکه چه «بابا» ور ته ګوډی او شکرې را وړې وی-زمونږ جهاز ته دمسقط
ځینې مامورین اوسپاهیان راغلل ، دسپاهیانو لباس ئې په ګـوا در کښې
بیان شسو ی ؤ دپاکستان خلکو ته ئې دمسقط دلېدلو او کتلو اجا ز
و کړه، مګر دنو رو ملکو نوخلکو ته اجازه نه وه .

دمسقط بندر اوسمندری غاړه ډېره ښکلې معلومېده-دغر و نو تر منځ
را ګېر ساحل کښې درې قسمه وړې وړې چپه ئـې ، بادبانی او بخا ر
کشتۍ کښته پور تـه ځغلېدې .

زمونږ دجهاز یو څو تنه کاریګران چه انګریزان وو، په یوه بخا ر
کشتۍ کښې چه له مسقط نه راغلې وه او دانګریزانو جنده پرې رپېده، مسق
ته پورې وتل او یو ساعت پس بېرته راغلل،زمونږ جهاز په مسقط کښې له(
ساعته ځنډ نه پس په دولس نیمې بجې د« بندرعباس »په طرف د روا نې

په ۲۰ ساعته کښې د بندر عباس شاوخواته ورسېدا و د ساحل نه ئې لمير ي لنـ
واچاوه ، په بخاری کشتۍ کښې له بندر عباس نه يو ايرانی پليس او دو
مامورين راغلل او خوك چه په بندر عباس کښې کوزېدل . دهغوی پاسپور تو نـ
و کـتل .

د بندر عبـاس په او بو کښې د ر ې ځلو ر نور جهـا زو نه هم و لا ړو
د بندر عبـاس و دا نۍ چه شاته ئې په وريځو اوړ و کښې د غر و نو سلـ
ښکار يده ، له ليرې ليدل کېدې ، جهـاز ته په وړو کشتيو کښې مـالو نه را وړ ی شو
او د مـالو نـو د خېژو لو او کـوزولو قصه په « ٤ » ساعته کښې ختمه شو
نژدې په ۱۲ بجې جهاز له بندر عباس نه خپل مار پيچ حر كت شروع کـ
او د عربستان د سا حل په لور روان شو .

د بندر عباس او « دوبی » تر منځ په بحری سفر کښې نوی واقعه د بـ
راالوتل او د سمندر طوفا نی کېدل ؤ .

کهڅه هم په دې موسم يعنې د فروری او مارچ په مياشتو کښې بحر هنـ
او د فارس خليج آرام وی او بحری سفر د ېر پـه ښه صورت سر تـه رسېږي
مو نږ تر بندر عباس پورې په ډېر ه آرامۍ ...

ـله په‌يوه ادخ کـله په‌بل ادخ خوځيږی اوجر کيږی، زمو نږ جهاز
دغه شان‌دسمندر دطوفانی چپو په‌منځ کنبې لـکه بودبود کی په‌يوه
ـخ او بل ادخ اوچت ښکنه پورته کيدءاومسافرين ئې‌هم له‌ځان
ـرءدنا آرامی په‌تال ځنـگول، په‌دې‌وجم په ډېروخلـکوسرو نه و گرځيدل
ـوك گـنگس شول، چا گرځو نو نه و کړل، هرطرف ته‌اخ‌اوخ شرو ع شو،
ـماهم د گرځون دوره راغله، څه‌چه‌مې‌خوړ لی‌وو هغه مې و گرځول،
ـه‌دغسې وخت کنبې دليموپا نارنج اوبه فايده منی‌وی مگر دا پيش بينی
ـکثرو خلـکو دنابلدی په‌وجه نه‌وه کړ ې -
بې‌له و يدو کيدو اوخوب نه‌بله‌چاره نه وه نولادم په‌خپل ځای کنبې
ـر يو تم‌اودسمندر طوفانی‌دوره مې‌په‌خوب تيره کړه، چه‌راويښ شوم دشپې
ـنهه‌بجې وې اوجهاز د«دوبی» په‌اوبو کنبې‌ولاړ و‌، دې ځای ته مو نږ په
«۹» ساعته کنبې راور سيدو ۰

## دوبی اوشارجه

دوبی، اوشارجه دعربو يوه وړه علاقه ده چه په وچـه کنبې‌دسعـو دی
ـتان ... ملگيدلی ده په «دوبی» کنبې‌ځانله سلطان اوپـه «شارجه»

د کښتیو تګ راتګ مشکل وی. سهر چه د نمر پلوشو د« دوبی »د خلکو هډوکي
تاوده کړل، نو په خپلو و ړو کشتیو کښې دجها ز په اور را و ز غلېدل
د لته بیا دما لو نو کوزولو او خېژولو قصه شروع شوه، د« دوبی »چا اه و ا نا نو
عربی ویله او ځینې پکښې په فارسی هم غبز بدل.

زمونږ جهاز د« ۱۳ »ساعته ځنډ نه پس دمار چ په ٤ په لس بجې مخ
په » بحرین » و خوځېد .

بحرین

دفارس په خلیج کښې دسعو دی عر بستان او د( کـا تار) دشبه جز یرې
تر منځ پروت دی، خلك ئې ا کثر عرب دی، ځینې انګریزی او هندی مهاجرین
هم پکښې شته ، بحرین دڅو مختلفو جزیرو نه عبارت دی، چه تر ټو لو لو ی
جزیره پخپله د« بحرین » جزیره ده، دبحرین موجوده سلطان« شیخ سلیمان
بن حمد آل خلیفه » نومېږی، چه په ۱۹٤۲ع کښې په تخت ناست دی، دبحرین
نفوس یو لك او شل زره دی، بحرین د تېلو زیا ته ذخیره لری. چه په دې وجه ئې
زیات شهر ت او اهمیت مو ندلی دی، د تېلو کمپنۍ دامریکا یانو او انګریزانو
په لاس کښې ده، په دې کمپنۍ کښې ا کثر انګریزان ، امریکا یان او هندیان
کار کوی ، دبل ځای سری ته په میاشت کښې شپږ سوه او په خپله دبحرین

هم پر بوتیؤ 'وایی چه دچنگیز او تیمور لښکرې هم دې جزیرې ته رسیدلي
او د چنګیز زوی «منګولا» د پر کلو نه ددې ځای له مرغلرو نه ګټه اخیسته
په بحرین کښې له ډېر عمر نه دا نګریزانو یو نفر مستشار موجود دی
ددې ځای ټولې چارې ده په مشوره اجرا کیږی .

زمونږ جهاز دمارچ په پنځم سهر اوه بجې یعنې له «دوبی» نه په «۱
ساعته کښې دبحرین بندر ته ورسید دلته دبحرین دو ېزې یو نفر مامور را
کـو مو پا کښتا نیا نو چه د بحرین دلیدو شوق درلـود، هغوی ته ئـ
د کوز یدو اجازه ور کړه، لاکن زما داجازې را کوا و نه ئې معافی وغوښته
زه دبحرین په بندر کښې د «کوهاټ» دیو پښتون سره مخامخ شوم ، د
له کراچی ځخه زمو نږ سره په جهاز کښې راسپور شویؤ او دبحرین د تیل
په کمپنۍ کښې ئې کار کاوه، دی په رخصتۍ کور ته تللیؤ، ده و ی
چه زما سره په بحرین کښې پنځه شپږ تنه نور پښتانه هم په کمپنۍ کښې
کار کوی .

دوطن دحال احوال پوښتنه مې ترې و کړه، وئې ویل چه پښتانه د پاکستان

## ددریاب یوه نظاره

ز دخپل عادت سره سم دسمندر په‌بې پایا وه چپو شبې لاهو شو ' په
ټه کښې ۱۶٬۱۵ میله لاروهل دده عادت ؤ، څو مره چه یو بندر ته
هازرا تلل دتماشې نه‌ډکوی، دغسې دیو بندر نه‌دجهازروانېدل هم یوه‌عجیبه
داره لری، دروانېدو اوراتلو په‌دواړووختونو کښې، دساحل دخلکو
رگې دجهاز په‌اور اودجهاز دخلکو سترگې دساحل په لور کښېوی،
ه چپه‌خوله دیوبل سره وداع کوی، دریابی مرغان هم په دې وخت
کښې دښه‌راغلی اومخه‌ښې رسم په‌ښه شان په‌ځای کوی . دغه‌مرغان تر ډېره
ده پورې په‌هرځای کښې دجهاز سره‌روان‌دی، کله ئې په‌سرچورلکو نه
خوری او کله ئې په‌اړخ اړخ کښې داوبو مخ دستر ولاندې ساتی کله
چه اوبو ته څوك دخوړلو څیزو غورځوی، نودوی تماشې ته‌بیا هله‌گوره
ول پرې راغوټه شی، چانغ چوغ جوړ کړی، کله خوبه موکورونو
سپینو کوترو ته دانې اچولی‌وی، دغه‌حال ددریابی مارغانو هم وی،
دوی چه‌له ډېرو الوتو څخه ستړی شی، نوبیا دسمندر په‌سر لکه دایلو ناست
گځی اوهواخوری کوی —

رنگی وی- عجیبه داده چه دسمندری جهاز ونو پورتنی رنگ هم ز
سپین وی اوسمندری فوځ هم سپین لباس اغوندی؛ دجهازو انا نو جا
هم غالباً سپینې وی .

زه دومره ویلای شم، چه دسمندر په نورواوبو کښې سپین رنګ له لی
څخه ښکاری، نو ښایی له دې کبله دجهاز ونودپاره دا رنګ غوره شوی
ددریابی مارغانو دپاره هم دې دپاره چه دسمندر په بې پایانه غېبز ک
خپل سپلونه او ملګری پیدا کړی شی، ددغه رنګ ضرورت
فطرت محسوس کړی وی .

په افسانو کښې وایی چه په دریا بونو کښې د پر ښکلی مخلوق و ی
دنیا فتحپوری په ننګارستان کښې دیوماهی ګیراو دسمندر دښا پیری قصه
په همدغه وخت کښې لوستې وه، ښتیاده چه دسمندر تلونه دد پر و قیم
مرغلرو، یاقوتو، رنګینو ماهیانو اوقسم قسم بوتو څخه ډك وی او
دقدرت بوغځانله پراسراره عالم دی .

کویت

دخلیج فارس په غربی غاړه دعربو یو آخری ریاست دی، چه په وچه

کنبی ملګری ؤ، دی په خوی ترم اونبه سړی ؤ، مګر دانګریزانو د کاروبا
ستاینه ئې خپله وظیفه بلله، په جهاز کنبی نور عرب هم د برو و، داو زد
ګګرې دپاسه لنډه کرتی، اغوستل اوله سر نه یوروما ل او چلتا ر تا و
ددوی دپېژندلو نښه ده - عجبه دا ده چه دوی دخپل ملك نه بهر یورپی لبا
دریشی اغوندی، خو چه خپل وطن ته راورسېږی، نو سملاستی بېه بدله کړ
او په یو ساعت کنبې بیا عرب شی، بنایی دا به ددې دپاره وی چه د کور ک
خلکو ته ئې پېژندل آسان وی .

د کویت په بندر کنبې د کویت دپاسپورټ د کتنې یو مامور جهاز ته راغ
له دریشی سره ئې له سر نه خپل عربی سرتړونی دسمال او چلتار تړلی ؤ، تا به
چه چاورته دسرخوږی علاج ښودلی دی .

ما چه د عربو دا اوزدې خلکې چه پوندې او پړ کی هم پکښې پټ و
ولیدې، نوار یان شوم، چه دوی ددې جامو سره د دنیا کاروبار څنګه کو
او که چېرې د منډې ځای راشی، نو بیا خو به خلکه په ځان پسې را ک
د کویت، کوزه برخه چه «مینا آل احمدی» نومېږی د بهرولو کار
او مشینونو مرکزدی . مو نږ دمارچ په شپږ اته بجې دغه ځای ته ور
... ولا د یوې ددې ځای دتېلو واکا

د کویټ آبادي د ماښام د برقونو په رڼا کښې ډېره ښکلې برېښېده .

د سمندراو بیا د کشتۍ ماښام په هر ځای کښې ډېرزړه راخکونکی وی

دشپې په تیاره کښې چه سړی له لیرې نه د کومې کشتۍ برقونه اورڼاګا

و ګوری نو خیال کوی چه ګوندې کوم ښار ، یا کوم بیلډنګ یا کوم لو

عمارت دی .

## د کویت او آبادان تر منځ

په کویټ کښې له یوولس ساعته ایسار تیاڅخه پس کشتۍ دشپې په دولس بجې

د آبادان په لوردروانېدوچیغه ووېستله . ګیځ چه زه په پخپل وخ

له خوب نه پاڅېدم، د کمرې په دریڅه کښې رڼا معلومېده، چه سرمې بهر

هماغه سمندردی ، هماغه چپې او هماغه کشتۍ ده، چه د یوې لو

کلا په څېر داوبو په منځ روانه ده .

اوګورئ !! د تعجب خبره نه ده، اوس خلکو داسې کلاګانی جوړ

کړې دی، چه په هوا الوزی، نو په اوبو خو ضرور تلی شی، دسهر مطا ل

او څه لیکل زما دډېرعمرعادت دی په سفر کښې خو دا عادت لا زیات

ځکه بې له دې په بل څه وخت ایرول مشکل وی، نور کله بهچه ګیځ پاڅې

دوه عرب را سره ملګری وو، مونږ اودس چه بهموو کړ، نو خبر ی به

د سفر یوا ځې و الی هم یو بل شان خوندلری ، اصل په سفر کښې تنهائي ده ،
لګری خو عارضی دی ، کله پیدا شی او کله نه ـ او بیا څوک چه ددماغی
شغولا په خوند بلدوی ، لیکن او ستلئي خوی ګرځیدلی وی ، دفطرت مطالعه
و په هرشی کښې غور کول ئي وظیفه وی ، نو هغه بیا دیوا ځې تو ب څه پروا کوی ؟

د سهر دپاڅیدو سره مې قلم را واخیست او یـو څو پا ڼې مې ولیکلې ،
امې د نګارستان دیوې نالوستې قصې په مطالعه پیل و کړ ، دا قصه په اصل کښې
م نا آشنا وه ؛ خدای خبر نیاز صاحب د یونان د کومو پخوانـو
صوله منبع نه را و پستلې وه ، چه دپر ښتو ، پیریانو او اسمانی مخلوقو نیکن
حیرانوونـکی پاتو نه پکښې لو بیدلې ؤو ، دقصې نوم « کیو پډ او سایکی » دی
کیو پډ د اسمان د یو ې ملـکې « وینس » ځوی او « سایکی » دیو نا ن
والی « آګستس » پی مخې مرغلره لـوروه ، د انسا ن او ښاپیری د محبت
ې به موده ېرې او رېدلی وی خودا په ټولو کښې ، خو ندوره او تعجب نا که ده .

دتعجب یو ه بله خبره هم واوری ء ! په همدې وخت کښې چه زه د کیو پډ او سایکی
سه لولم او د « سایکی » د جمال او ښکلا په ستاینه کښې د « نیاز » د قلمی
کړو ، خوږو جذابو الفاظو څخه خوند اخلم او دسا یـکی د ښایست لمر
ې ستر ګو ته وړاندې وړاندې کېږی ، پـه همدې وخت کښې د کمر ې

جهاز د گروپو نو شغله ده، او که نه د کومې لویې آینې پرک دی !

چه کړ کۍ ته مخامخ شوم، څه گورم؟ چه د نمر نورانــی کـکـوړ
ددریابی مخلوق دتودولو او بخارا تودراخکلواو دنیا رڼا کولو د پاره دشـ
له بستر نه سرراپورته کړیدی، اود نورانی پلوشو په نوستلو لگیادی، د کشتـ
د کړ کۍ په چو کاټ کښې د ننه د نمر دغه خوندوره ننداره دستر گورپ کښـ
تېره شـوه او پـه دو هم ځل مې نه لیدی شو ه، زه یو ساعت تـر
غوندې هك پك کښېناستم، کتاب مې له لاسه ولوېد. زړه مې په دې سودا
تـلو لیۀ، چــه دا سپین پړ ك بیا وگور م ، مگر بیا چړ ته کېدی شو
د « سایـکی » دحسن یوه جلوه وه چه « کیوپډ » ته په توره شپه کښې ځرگنده شـ
او بیا لاړه تری ترشوه . کشتۍ په سمندر کښې افقی حرکت کاوه او تـ
په آسما ن کښې پورته روان ؤ ، دایوا تفاق ؤ اوخالی دیورپ دپاره
دنو رجلوې په آرزو گانو لاس ته نه راځی ، دحسن او ښایست ښـکا
دآرزو اوامید په دام کښې نه کېږېږی داصرف دبخت او نصیب لا سو
نیولی شی اوهغه هم په ټول عمر کښې یو ځل - !

او ..... جهاز آبادان ته روان دی اوزه په کومو ځمکواو آسمانونو کښـ
گرځم د خیال ما رغه مې د جهاز په پنجره کښې بیا را گیر کړ

لار کښې د بېړدولتونه ليدلي دي او هروخت چه هر بندر ته ورشي، دمالو
انبارونه ورته پراته وي .

دجهاز دحرکت خفيف غوندې شور چه له اتو شپونه ورسره اشنا
غوږته راځي، سړی به وائي چه داو بو په زړنده کښې ناست يم، په بحر
جهاز کښې دالوتکې يادرپل غوندې سر گنگسوونکی شور نه وي، خو ه
چه بحر آرام وي .

* * * * *

په کړ کۍ کښې چه رڼا زياته شوه نوسړی بهر کړ گورم چه دسمند
په تلبر کې زراو به شوی اودنمر دپلوشو لاندې لکه ښيښې پر کېږي .

د سمندر په شاد چپومو ړې اوږدې اوږدې تيتېږي او هسکېږي ،چپر
خو به مودشگو په دېرې کښې دباد په واسطه جوړې شوې موړې او ږدې ژو
ليدلې وي ، دسمندر چپې هم بېدو دغسې موړې اوږدې ژورې اری .
کله چه سړی له جهاز نه دچپو پر له پسې حرکت، خوځېدو کښته کېدو پور
کېدو ته ښه ځير شي نو دچپوله منځه داغبز راخېژ ي .

چپې د سمندر يو، آ ر ا م ز مو نږ فنا ده

ژوندون: مو نږ په دې دي، چه آرام نشو هېڅکله

کښې دیو خوش خویه ایرانی ځلمی سره چه له بندر عباس نه دآبادان ...
په نېټ سپور شوی ؤ، په خبرو اترو لګیا شو م،
ده وویل : اوس دآبادان داوبو شاوخواته راو ر سېدو . دغه ولا ...
کښتۍ تولې دټېلوورلو کښتۍ دی، له دې ځای نه مخ کښې د فرا ...
اودجلې رودخانه شروع کېږی، ددې رودخانې پلنوالی لږدی، نو ځکه ...
تولې کښتۍ پکښې په یوځلی نشی ننوتلی. دټېلوورار دېار . چه له یو ځای ...
بل ځای نه کومې کښتۍ راشی، نو هغه په دې ځای کښې لنګر اچوی ...
اوبیا وار په وار په رود خانه کښې دننه آبادان ته درومی، په دې رودخانه ...
کښې چه دشط العرب په نامه یادېږی، کښتۍ اکثراً د ۱۲ بجو په و خت ...
کښې چه دسمندر د «مد» وخت دی ننوځی دنمر داوچتېد وسره سم، دسمند ...
«مد» هم شروع کېږی اودسمندر اوبه مخ په بره خېژی، په دې و خت ...
کښې دشط العرب اوبه هم مخ په شا یعنې غرب خواته روانېږی، ددې مد سر ...
یوځای کښتۍ هم په شط العرب کښې ننوځی . ماسپښین چه نمر دمغر ...
په لورروان شی، نو د سمندر «جزر» هم شروع شی او د شط العرب او ...
په خپل طبعی حالت مخ په کښته روانې شی، په دې وخت کښې کښتۍ ...
داوبو دجریان سره یوځای له شط العرب نه دراوتلو کوښښ کوی . دسمند ...

راغی او د کشتۍ وا گی ئې په خپل لا س کښې و نیولې ـ خبر ه دا ده
دشط العرب رودخانه دعراق حداو حدودی، دحسا بېنز تولې کشتۍ چه په
رودخانه کښې دننه آبادان او بصرې ته ځی، دعراق حکومت تر ې یو
ټکسی اخلی او دعراق کشتیوان ئې په رودخانه کښې دننه بیایی .

په رودخانه کې دننه داوبو دلېزوالی په وجه جهازونه گړ ندی نه
تللی او له لس پنځلس زره ټنه څخه درانه جهازونه هم نشی ور ننو تلی
درودخانې په دواړو غاړو کې دعراق دحکومت له خوا نه سمندری څ
جوړ شوی دی، چه په منځ کښې ئې ساعت په ساعت سره اوشنه گر وپو
پر کېږی ، سره دخطر اوشنه دبې خطرۍ نښه ده .

د سمندر په ټولو غاړو کښې ښارونو ته نژدې دغسې څلی او لو
منارونه ولاړ دی، چه په منځ کښې ئې نو ر لو ستو نکی بر قو
پر کېږی، دا بر قونه دشپې په تیاره کښې له د پر لیر ې ن
ښکاری او مطلب دادی چه جهازونه په دغه لارلاړ نشی .

زمونږ کشتۍ له لس ساعته مزل نه وروسته نژ دې په لس بجې
درودخانې خولې ته راورسېدلې وه او دوه ساعته ئې دغلته لنگر اچولی ق
په دولس نیمې بجې دډوډۍ زنگ وواهه شو، چه ډوډۍ موخوړه نو دهر

نو کت او د بدبې قصه ختمېږي، دشط العرب په د واړو غاړو د کجور ځنګل
ولاړ دی، قطب غاړې ته ئې د ایران خاوره او سویل ته ئې دعراق علاقه ده
د کجورو دا ګڼ او لوی ځنګل چه مې ته ستر ګو شو، نو د "سواد العراق"
کلیمه راپه زړه شوه، چه په عربی کتابو نو کښې ډېره ذکر شوې ده.
وائی چه عراق ټول له دغسې نخلستانو نو څخه ډک او د دجلې او فرات
په غاړه ان تر بغداد پورې د کجورو لوی ځنګل ولاړ دی، چه په دې وجه
دعراق مهم صادرات کجورې دی. جهاز په مزه او ورورو وان دی،
هر و دخاله کښې دعربو وړې وړې کښتۍ کښته پورته ز غلېدې، دوه ئنه عرب
په خپل ساده عربی لباس کښې دخپلې وړې کشتۍ په منځ کښې ناست وو
او خوږې عربی سندرې ئې ویلې. کشتۍ له و سبود که وه او ګړندی
ګړندۍ د آبادان په لور ز غلېده. دعربو دزړه راښکونکې موسیقی خوږې
نغمې خومو نږدې کاتو نو په ذریعه اوریدلې وې، لاکن کوم خوند او کیف
چه دشط العرب په منځ کښې دد و وغریب کارو عربو په سندرو کښې موجود و
هغه په ټول ژوند کې مانه ؤ ایدلی.

## د آبادان بندر

نږدې یوه بجه ز موږ کښتۍ د آبادان بندر ته ... ... ...

نن پرون داروپا دصنعت او تگ وراتگ ماشینونه قول د منځني شر
یعني ایران ، عراق ، کویټ ، بحرین اودهران په پټرولو چورلی' دمشر
خلک په خپل ملک کښې دخوا ریه او غریبۍ ژوندتېروی او د خپ
وطن قیمتي ذخیرې تري نور خلک زغلوی' دآبادان بندر نژدې د کراچ
دبندرهومره معلومېده ، شل دېرش انگلیسي او نورې کشتۍ پکښې ولاړې
چه لههرځای څخه په تېلو پسې راغلې وې .
دبندرپه غاړه لوی لوی قوی جرثقیلونه پهفعالیت لگیا وواوله جها زڅخه
مالونه کښته کول 'ایرانی عسکر ودساحل پیره کوله چهڅوک بې اجاز
له جهازڅخه کوزنشي- د کشتۍ او پاسپورت مامورین جها زته را وخ
اودآبادان د کوزېد ونکو پاسپورتونه ئې وېزه کړل' نور مسافرین په جها
کښې پاتې شول شپه دآبادان په بندر کښې تېره'شوه گېځ په ا ته بج
تقریباً له « ۲۰ » ساعته ایسارتیا نه پس دخرمشهر په لورو خوځېد و —

## خرمشهر

بصرې ته نژدې دشط العرب پهقطبي غاړه دایران پوسر حدی ځای د
کشتۍ له آبادان نه په یوه ساعت کښې دلته راورسېده او درودخانې په منځ

مو نز دې درې ساعته دمه جوړه کړه 'دخرم شهر گرم بازار' دېخوښېتو
ودانی او پاخه سړ کونه موتر یوې اندازې لهستر کو څخه تېرشول 'دخر
شهر پهمنځ کښې پوسینه هم تېرشوې دی کهڅه هم او بسه ئې تېـز ېدی
مگر بخاری کشتۍ پکښې کښته پورته ز غلی راز غلی.

خرم شهرته له تهران څخه دریل سړك هم راغلی دی دخرم شهر رار سپدل
زمو نبز دپاره دلسو شپو اوتقریباً د «۲۳۱» ساعته سمندری سفر دختمېد
زیری ؤ' نودادی پهدې ځای دسمندر دسفر قصه خلاصه شوه .

دریسا

په کوم جهاز کښې چهزه لهبمبۍ نهپهلسو شپو ورځو کښې خرم شهر ته
راغلم ' دهغه نوم دریسا (Dresa) دی ' داجهاز دیوې انگرېزی
کمپنۍ له خوا نه دبمبۍ او بصرې ترمنځ چلېږی .

دریسا بالکل نوی له لندن نهراغلی ؤ. نز دې پنځه زره ټنه درو
اویو زر خلك پکښې ځائېدل . ددې سمندری جهاز پهدوارو خواو کښې
دنجات ونېوړې کشتۍ ځوړندې وې 'دسامان دخېژولو او کوزولو
جر ثقیلو نه پهدوارو خواو کې ولاړوو' دې جهاز څلور طبقې یعنې څلور پوړ
درلودل' پهاول اودوهم منزل کښې ددوهمې درجې خلکو کوټې وې

دتهنس میز لېدل کیده، داـوبو اوساعت ئهري تول شیان اوهرقسم سامان
موجو د ؤ .

پهاوله‌درجه کوټو کښې دوه دوه چپر کټونه اوپه دوهمه درجه کمر
کښې درېدرې چپر کټونه سره له تولو ضروری شیانو په ډېرښه شان صف
سوتره پراته‌وو، کدی ،بالښت شړی، تولیه‌دهرچپر کټ‌ضروری‌سامان‌دی
دهر چپر کټ په خوا کې یوه‌یوه الماری، دمطالعې خاص‌برق،دضروری
شیانو داېښو دلو تاخ اوپه هره کوټه کښې برقی بادپکی، دلاس وینځلو
شروبی موجود وی ، تولې کوټې ډېرې پاکې سوتره اودروغتیا پهاساس
برابر هرسهر صفا کېږې تردې چه‌دمیکروب وژلوچړ کاوهم پکښې کېږ
دجهاز پهرمنزل کښې داودس خانې اولمبلوځایونه‌جوړ شوی‌دی .

پهلمباځی کښې هم دسمندر تروې هم‌خوږې هم تودې‌اوهم‌سړې او به
هروخت‌موجودې‌وې. پهاوله طبقه کښې‌دشرقی دو ډ ی هو ټل هم شته
په‌جهاز کښې دوه‌قسمه اروپائی‌اوشرقی پخلی کېږی،دچاچه کوم‌قسم خوا
خوښ‌وی. هغه ورته تیارږوی . ددریمې درجې خلك زیات دجهاز په‌منځ
کښې پخلی‌په‌خپله کوی لاکن د دغو ځایونو هوا په دې و اسطه ډېره
خرابه‌لو گجنه‌اوبدبویه وی، په‌جهاز کښې داروپائی خوراك ترتیب په‌دې

ماهی هم په کښې وی .

دولس بجې دغرمې ډوډی، چه ښوروا غوښه ،سابه، چکني مربـه او نور

او کـله کـله وریجې هم پکښې وي .

مازیـګر څلور بجې بیا یوه پیاله دشو دو چای اویوه کـلچه .

ماښام شپږ نیمې بجې دشپې ډوډی ـ چه ښوروا ،سابه او نور شیان پکښې و

دغرمې اوشپې په ډوډی کښې زیات رول الوګان لوبوی.

اروپایانو ته خدای پاك « پوتېټو » یعنې الو یو داسې بخت ور شی پید

کړی دی ـ چه هم غوښه ده ، هم سابه دی، هم حلوا ده او هم هر څه دی، په ارو پائي

خوراك کښې وچه غوښه او ماهیان هم ډېر وی ـ لیکن دوچې غوښې بلـک

د نومې غوښې سره زه ډېر په کړ اووم اوا کثر به مې نه خوړله . د غر مې

په ډوډی کښې ایښېدلې ور یجې او لبزه غورمه بیا هم څه قدر ګوزاره کوی

دغرمې او ماښام له ډوډی ـ څخه وروسته څه خوازه یعنې کریم یا پوډینګ

او یوه پیاله کافي یا چای د اروپائي خور اك اوی خصـو صیت دی .

لا کن دشو دو چا یو مزه ئې دسمندرا و بوو ړې ده، تل به دخوراك دمېز په سر ددې

چای په صفت کښې خبرې کېدلې ،چا به ویل تو دې او به دی ،چا به ویل د کو

پراته‌وو، چه حساب ئې دجهاز جر ثقیلو نو ته‌معلوم ؤ، او بل څوك ئې په انداز
نه‌خبر بدل. ددې جهاز په‌مالو نواته‌بندرو نه ډك‌شول او بیائې لاهم سینه تشه نه‌و
دا اول شیان دنمونې په‌صورت ولیکل‌شو، که نه، په‌دې جهاز کښې لانو ره
د پرشیان شته‌چه لیکل ئې ځانله کتاب غواړي. اوس نو ستاسې خو ښه چ
دریسا «ته‌سمندري جهاز وایې او که‌داو بوی منځ کښې یو جوړشوی خوځند ه
زمـو په جهاز کښې دسیلون، افریقې، عربو او ایران او هرځای خلك و
په‌دوی کښې دلطیف جنس یوخوښې نمونې او دنزاکت او اطافت مجسمې هم و
کله کله چه‌به‌دجهاز په برنډه کښې ښکاره‌شوې، نو دجهاز کپتان به‌هم ورتـ
په‌احترام کولو مجبورؤ، په‌دې جهاز کښې یو بل عجیب‌شی دجهاز دا کنړ
انګلیسی کاریګرو دزیرو پر ښنودلو تماشه‌وه.
دا قصه‌چه‌مې ولیده، نو یقین مې راغی، چه انګریزان اوس ددینداری مظاهر
کولو ته‌اړشوی دی. یو وخت په‌مسلمانانو کښې داسلام او مذهب جذبه‌د دو
په‌مخکښې یو لوی غرؤ. اوس چه په‌مشرق کښې دملیت او قومیت جذبه غالبه‌شو
او کومه وسله‌چه دوی مشرق ته‌راوړه، خلك هماغه وسله‌ددوی په‌مقابل کښ
استعمالوي، نو ځکه دوی غواړي چه‌دغه نوې وسله بیا پڅه او بې اثره کړ
او په‌ځای ئې مذهبی رنګ‌ته رواج ورکړی.

## اهواز

دمارچ په‌اتم یعنې په‌هماغه‌ورځ چه‌له‌لمدي نه‌وچې ته‌راکوزشوو، په‌دولس بج...
په‌کرایی موټر کښې اهوازته روان‌شوو. موټر ښه‌ؤ مګرلار بالکل کچ...
اودمځینې خاورې یو دښت‌ؤ، دیوسړك په‌ځای یکښې دموټرو د ټک راتګ...
په‌وجه‌دوه‌درې لارې جوړې‌شوی‌وې، په‌همدغې یوه‌لار موټر ګرندی‌ز غلېد...
په‌دوه ساعته کښې (اهواز) ته‌ورسېدم‌ـ د« پارك نو» په‌هوټل کښې مې دشپ...
تېرولو ځای‌ونیوند، بیا په‌بازار کښې‌یوساعت وګرځېدم، لاکن یو نابلد مو...
اوبل یوازې، نوځکه دډېرو ګرځېدوشوق هم‌راسره نه‌ؤ، بیاهم څه چه‌م...
په‌اهواز کښې‌ولیدل له‌تاسې ئې نه پټوم.
اهواز وړوکی مګرډولی‌ښاردی، بازارونه اوسړکونه‌ئې پاخه‌دي، مازیګ...
مهال دخلکو ګڼه‌ګونه زیاته‌وی. دښار په شمال کښې‌دیوملی باغ په‌نام...
یوباغ دخلکو دکیناستو پاخېدو اوځښېلو ښه‌ځای دی. دملی‌باغ په سر...
دیوه‌څلور لارې په‌منځ کښې‌دمحمد رضا پهلوی یوه نوې مجسمه‌چ...
په‌اس‌پاندې‌سوردی. له‌لیرې‌څخه‌ستر ګې‌ځانته‌راکاږي، داهواز خلك زیا...
عرب‌دی اوعربی ژبه‌وایی، دمازیګر دتفریح په‌وخت زیات‌خلك په‌دربش...
اوښه‌لباس کښې لیدل کیږي ـ په‌بازار کښې ځای په‌ځای « آرایش ګاهو ند...

دغه‌خبر پوره رشتیاشو. درزم آرا قتل‌داخبارو الاؤ دپاره یوډ ېر د لچسپ

خبرؤ- رزم آرا دمارچ په اوم‌دفدایان اسلام‌دډلې یوه تن د تهران په یوه

جمات کښې یوځو ګولۍ ویشتلی‌ؤ.

که‌دیواخبارو الاپلار مړشی او ځوک ئې ورته‌دمرګ‌خبرراوړی، ګومان کوو

چه‌دده سره‌به‌دغه دمرګ دومره سودانه وی-بلکه‌زیات فکربه‌ئې په دې

کښې وی-چه‌دغه خبرزرنشر کړی،چه اخبار ډېر خرڅشی او لوستونکو ته

یوخوند ورخبر پیداشی.

## دتهران اورګادی

دمارچ په‌اتم مازیګر مې ددوهمې درجې ټکټ‌اخیستی‌ؤ، دمارچ په‌نهم سهار

وه‌بجې د ګاډی ټېسن ته‌ورسېدم،ماخیال کا وه چه د لته به هم د هند

ګوندې ډېره ګڼه وی،لاکن دخدای فضل ؤ هر ځوک خپل خپل ځای ته

ه‌داده زړه ورتلل، له‌یوبل نه‌وړاندې کېدل اوجامې‌شلول نه وو. د ګاډی

کاریګرو نابلد وکسانو ته دځای، کوټې اوچوکۍ پوره‌لارښوونه کوله

ه‌یوه کوټه کښې‌شپږ چوکۍ پرتې وې اوزماچوکۍ پکښې‌دریم‌لمبر وه.

زه خوشحاله وم چه ددې ځای داورګاډی دوهمه‌درجه به‌دهندوستان

وندې دهرسړی دپاره دشپې دویده کېدلو ځانله ځایونه لری، لاکن

بیت الخلالری . په‌دې ریل کښې یوخوړونځی هم وُ، مګر دصفا یی او انتظا
مزه ئې نه‌وه‌ـ دغرمې په یووخت خوراك ئې له‌ما نه (۶۰) ریاله یعنی (٤۰
فغانۍ واخیستې‌ـ نوروسورلو هم دریل له هوټل اود کاریګرو له‌بې پروایی
وبې انصافۍ څخه پوره سرټکاوه، کوم‌وخت چه دسهر دنمرپه رڼا کښې
ریل له‌اهواز څخه‌مخ په تهران‌وخوځېدـ نو دشنېلواو مرغې په‌شین چمن‌ورسم‌شو
مو نبز نه ‌ځکښې دپسرلی ګلان، شینکی، دمېږو رمې، دمېښو یادې داسو نو
ګلې دښت‌اوبېدیا ته‌وتلی وې‌ـ اودپسرلی له‌تازګۍ اوخیرازۍ څخه ئې
طف اخیست .

ددې دښت په‌یووړو کې ټېسن باندې په‌غټ خط « آهودشت » لیکلی‌شوی‌وُ
ګویا ددې دښت نوم‌هم دهوسیو دښت‌وُ . دد غسې د ښت سر ٥ چه دپسر لی
موسم‌پکښې دڅارویو‌او بنیادما نو زړو نه یوشان‌خوشحا لېدی‌شی‌ـ همدغسې‌نوم
یېږی . په دغسې دښتو نو کې چه هوسۍ دبهارپه ګلورغړی رارغړی
عاشق ته د خپلې مینې دپا لنګ رغښتل را یاد شی .

محبوبا په کټ کې واوښته له‌خوابه

که هوسۍ وه دبهارپه ګلو رغښته

پسرلی دهوسیود ښت ټول په‌تنکیو شنېلواوسپینو ګلا نو فرش کړی‌وُ،

يـو اوي مرحمت دى؛ او نېز تـر دولس بجو پوري دخوزستان» پـه علاق
كښي روان وو؛ چه داور ستان ترغرونو پوري رسيدلي ده ، ددي علا قې
اكثر خلك عرب دي، په دې وجه دايران اوعراق په منځ كښي د دا يمي
اختلاف سبب دي او عراق ئې په ځان پوري د نښتلو لودعوه گيردی، مازيگر
نژدې گادى داورستان دغرونو په كښ ليچونو او تاو را تاوناوو نو كـ
ورننووت، درضاشاه له لويو كارو نـو څخه يواوى كار د تـهرا
او اهواز داور گادى دسړك جوړول دى ، دا اوسپن لار توله د غر و
په تنگو تنگوناوو نو كې ديوو ډو كى رود په غاړه غـاړه تللې د
چه «۱۳٦» واړه غټ سورنگو نه لري؛ او نژدې تر دوه گـلو متره پو ر
اوى تونل هم پـكښي شته دى .
وايي چه دا اوسپن لار زياتره جرمنيا نو جوړه كړې ده .
شپه مو په هغه ترتيب چه مخكښي مې وويل ، دچو كى ددواړو ار
د ډو تـرمنـځ پـه راغونډ و ښو تيره كړه، سهر چه څو نمر را او
اوه نيمې بجې گادى دتهران په تېښن ودريداوزه دلاله زار مهمانخا
ته چه دمبلمه په انتظار ئې يوه كو ټه ساتلې وه، ولاړم .

(وداد)

در پل‌دشو کېږي په وجه ترغرمې پورې له کوټې څخه بهرونه وتم، مطلب داؤ
چه لږ آرام وکړم، مګر خو نه سره وه، دزنګنوستړ کې مې دردو نیولې سم آرام
هم نه کېده او دومره نا آرامی هم نه وه، خیر په هر صورت دماز یګر تر پنځو
بجو پورې کښېنا ستم، ځکه چه دافغانی سفارت څخه مې د چا درا تلو امید
درلود ـ ولې چه له هوټل څخه مې تیلفونی خبرور کری ؤ. چه څوک را معلوم نشو،
نو بازارته یو ائې ووتلم، خیال مې وکړ چه په تهران‌غونډې ځای کښې
تو له ورځ په کوټــه کــې کښېناستل دځان سره ظلم کول دی . دلږ ساعت
ګرځېدو نه پس یوې سینما ته لاړم، هلته د « وداد » په نامه یو عربی فلم چالان ؤ
دعربی فلم دلیدو ډېر شوقمن وم، په هند کښې مې اراده درلوده چه
دراګرځېدو په وخت به په بصره او بغداد کښې عربی فلمونه وګورم .
مګر نصیب زما دارادې وا کې دخرمشهر په لار تهران ته راوګرځولې او دلته ئې
پــه عربی فلم وانړولم، اوس د « وداد » دفلم لنډه غونډې قصه واوری
وداد داخوږ نوم چه ددوستۍ اومحبت په معنی دی ـ دیوې عربی پېغلې نوم دی
دا پېغله دیو « باهر » نومی ځلمی محبوبه اوډزوندملګرې وه، په او ل
کښې ددوارو به ژوندون ؤ « باهر » دسوداګرۍ کار کاوه ـ پیسې هرڅه
ېې پروو اوددوارو شپې ورځې په خوښۍ تېرېدې .

یوځل ئې دمال قافله دا ړه مارو اوغلو ووهله ـ بل ځل هم ورته دغسې قص
پېښه شوه ـ او ددهما لی حالت ډېرخرا بشو . له یو بل نه قرض پور کو لو ته اړشو
و داد چه به دی همېشه غمجن اوفکر من لیده نو ډېره تسلي او ډاډ ګېر
به ئې ور کوله ـ مګر دهغه زړه قوت نه مو نده او همېشه به پر یشان اوغمجن
آ خـر يوه ورځ ور ته وداد ویل چه زه اورستا سره په دې حالت کښې ژو
تېرول نه غواړم ' زه له تا نه خواهش کووم چه ما خرڅه کړه او په هغو پیس
خپل کاروبار روان کړه ! باهر ته داخبره ډېره ســخته معلو مــېده
ځکه چه د « وداد » نه زړه صبرول هم څه آسا نه خبره نه وه ـ خو آخر دوداد ډه ټینګ
او دباهر دیو ملګری په مشوره ـ په دغې خبرې راضی شول ـ وداد دا نسا نا ن
دخرڅلاو بازار ته بو تلی شوه ـ په پخوا نو عربو کښې دو ینځو دخر څولو رواج
ډېرؤ ـ نو په دې وجه به دو ینځو دخرڅلاو دپاره یو خاص با زار جوړ بده
وداد هم دبې رحمه زما نې څپېړ و دغه بازار ته ورو ستله ' د پیسو خاو ندار
را ټول شول ـ دوداد دځېرې ښایست خولا پر ېږده دآواز تاثیر ئې دز ړو ن
ز ګو نه خوځول ـ انسا نان څه چه حیوا نات ئې هم له خو ده وو یستل . دغه وخـت
دې خپله داؤدی نغمه شروع کړه ـ مګر دې نغمې او هغې نغمې چه دې به د با ه
په غوز کې و یله ـ ډېر فرق درلود . دا نغمه ددې دپاره وه چه ځان دباهر دبـار

تندرۆ طوفانۆ د كانى زده‌ئى اوپه كاوه اوسپنى ئى ويلى كولى دگلو ت

نباخونه ئى را كنزول مارغان ئى را كوزول نو ديوسپين زيرى عرب زد

به‌ئى خنكه له گوگل خخه نه‌وپسته .

يوسپين زيرى عرب له پنځه زره‌روپونه تېر شو داقيمتى سودائى و كړ

اوپه بيرى كنبى سپاره‌شول دبيرى بادوانونه په‌حركت راغلل دودا

له‌اوښكونه سيند ونه جوړ شول گويا و داد«باهر» له كورن

بهرشوه اود«رضوان» دكاله گوتونه پرې رنا شول. سپين‌زيرى عرب ب

همېشه د«وداد»په‌شعر موسيقى پاڼده دغه‌ئى مشغولاوه‌اودغه‌ئى دروح غذ

دده‌يو ورار ه‌ۆ هغه غوښتل چه‌دوداد دزړه‌مينه‌ځانته‌را وگرځوى مگردى

بېچاره نه‌پوهېده‌چه‌دده‌تره‌خويواځې دوداد وجودپه‌پيسواخيستى‌ۆ اودائ

كورته راوستلې‌وه مگرددې زړه داخيستلوشى نه‌ۆاوهغه دباهرسره‌په‌خپل

كوركې پاتې‌شوى‌ۆ.

دخداى كارونه گوره دلته‌رضوان‌مريض‌شو دۆ ندانه تمه‌ئى خلاصه‌شو

وداد به‌ورته‌شپه ورځ‌سرته ناسته‌وه‌اوهلته د«باهر دۆندون بسرلى بياپه

غوړېدو راغلى ۆ تجارت‌ئى بيارنگ ورونق‌موندلى‌ۆ اودمال‌پيسومخه‌ورته

راگرځېدلې وه.

چه تـازمـا په خسمانه او خدمت کښې ډېر کړاو وېست - زه داجل پـه دروا
ولاړیم او دا خپل وصیت تا ته ایکلی در کووم ؛ زه رضوان د محمد ﷺ وی اقرار کو
چه ما خپله وینځه «وداد» آزاده کړه - زما د مرگ نه پس په دې د هیڅ چا حق نشته
اسما نو نه او ملایك په دې خبره شاهد دی. والله علی ما نقول شهید». دو صي
پانه ئې د وداد په لاس ور کړه - د سپین ږیری روح والوت ' و داد پرې ځـا
وغوړاوه او لاسو نه ئې ور له ښکل کړل. په دې وخت کښې وداد د خپل آزاد
خط په لاس نیولی د خپل ساتلی توتی پنجرې ته ورغله او هغه ئې له پنجرې
آزاد کړ - توتی وزرونه خواره کړل لاړ دو نو په ښاخو نو په خوشحالی په الو تو
او «وداد» د خپـل وطن پـه لور د تلو وزرونه خپاره کړل. بیا هم «هغه کشتی
او «وداد» پکښې ناسته ده - دا ځل د دریاب چپې هم له خوشحالی څخه نا
او پورته غورځی.

وداد د خپل کلي ته راورسېده - د «باهر» کور د پخوا غوندې بیا له هر څـه
شوی ؤ. نبه ژوندون ؤ. نبه ساعت ؤ - هر څه ډېر و - خو یوا ځې «وداد» پکښې
هغه هم خدای د نا امیدی له تپرو نه بهر راووېستله - باهر په کور کښې د دوست
مجلس جوړ کړی ؤ او د خوښۍ او خوشحالی لوی مجلس ؤ. په دې وخت ک
د قربانی د ونې خوږه مېوه «وداد» د باهر په انگر را ننوتله او د خپلې خوندو

يه‌دې وخت کښې دسينماخلکو چك چکې وکړې او زماستر گوورته داوښکو
مرغلرې نثار کړې. بس قصه ختمه شوه اوسينماهم.

## دتهران وضعيت

داخل په تهران کښې دډېرو پاتې کېدو څه صورت نه ؤ. له يوې خوا تلـو او
له بلې خوا کم خرڅې وه. په دې پېره کې د«رزم آرا» دوژلو هنګامې د تهران
وضعيت بالکل په انقلابي رنګ بدل کړې ؤ. اخبارو نو سخت تهديدو نـ
نشرول. د نوی صدر اعظم په باره کښې ئې رائې ښکاره کولې. ځينو لـکـ
« آتش. اصناف. » او نورو ليکلي وو. که بل صدراعظم هم د تېلو په معامله کښې
خيانت وکړ ی. نو عاقبت به ئې دغسې وی. لکه درزم آرا. په تهـران کښـ
دډېرو خلکو آرا پر ضدليدل کېدل. او دده په مرګ باندې خوښ مـ
ښکار ېدل. په تهران کښې دروزنامو او مجلو هسې غوبل دی. ځينې دحکومـ
موافق او ځينې مخالف نشريات کوی. دورځپانو زيات نشريات د يـو بـ
مخالف وی. يو هورځپانه ديوې موضوع دطرفدارۍ دليلو نه وايی. او بله ئې د ترد
پـه دې و جـه د نشريـا تو اثر ډېر نه معلومېږی. ځکه چه يو په بل دفع کېږ

## [۱۵٦]

# افغانی سفارت ته ورتګ

دمارچ ۱۱:

په دې ورځ سهار په تهران کښې افغانی سفارت ته لاړم. سر کاتب عبدالقادرخا
چه د کابل د مرحوم ملک الشعرا قاری عبدالله خان ځوی دی او سرورخان ر
دسفارت سر کاتب دواړه مې ولیدل. ددوی په دفتر کښې د تهران دیوې نو
روزنامې (ندای دوستان) مدیر «م' پویان» ناست و. ده دافغانستا
له مطبوعاتو سره ارتباط پیدا کول غوښتل' زه هم ورسره معرفي شوم. څه رنګه چ
دنوې زمانې موږ دی' ده زما آدرس واخیسته او ما ته ده او وعده مو وکړه چ
یو بل سره په ارتباط ساتو. سرورخان رښاده ته د کابل تولې فارسي مجلې ل
عرفان' پښتون ږغ' ژوندون او نورې ورکړې. ما ورته وویل چه بای
د کابل مجله او هیواد هم ورکړې. چه دی له پښتو اخبارونو څخه هم خبر شي
ده وویل چه مونږ ته د کابل مجله او هیواد نه راځي. ما وویل چه مونږ ئې
تولو سفارتونو ته لېږو' دلته ئې هم رااستوو. نو څه وجه ده چه نه رارسېږي
دی په ځواب کښې غلي غوندې شو' خیر مطلب داچه هغه نماینده ته دافغانستان
دمعرفي دپاره یوازې فارسي اخبارونه ورکړي شول او د پښتو اخبارو ن
کښې څه پته نه لګېده. ما په زړه کښې وویل چه ښائی زمونږ نمایندګان پ
خارج کښې دافغانستان معرفي نیمه اوس کوي او نیمه به وروسته زمانې ت

اوس په کوم کار مصروف دی-چه وز گار شی نو بیا به تا سې و رشی
خیال مې و کړ چه ښایی سفیر به دهر نوی میلمه له کتلو څخه ځکه د
کوی- چه هسې نه ځوك بې خرڅه شوی نه وی او پیسې را نه و نه غواړی.

تر دو لس بجو پورې مې انتظار وو یست، چه څه پته و نه لګېده، نو سر کاتب
مې وو یل- چه زه اوس ځم او کوم بل وخت به د سفیر د ملاقات شرفیاېی ته راش
بیا زه سفارت ته ور نه رغلم- سبا له سر کاتب او رنیا هو ټل ته را غلل، ددو
سره احسان رشتیا هم ؤ، چه په دغو ور ځو کښې له کابل نه د سیل او تفریح دپا
تهران ته راغلی ؤ . ما زیګر زه او احسان په بازار کښې و ګرځېدو، دی دیو
ښکلې ایرانۍ عکاسې د کان ته ورغی او څېل عکسو نه ئې ترې واخیستل
دغې مېرمنې دستر ګو په کمره کښې هم دخلکو عکسو نه اخیستل- بیا
په یوه کافی کښې چای و څکله، په دې ځای کښې احسان رشتیا ځان و تا له « ۶۸
پونده و خوت، و ئې و یل- زه په تهران کښې یو پونډ زیات شوی یم- ما هم ځا
و تا له « ۷۷ » پونده و ختلم، ځکه چه ما یخوا کله ځان نه ؤ تللی- نو هیڅ پوه نشو
چه زیات شوی یم که کم شوی ؟ مګر دومره را ته معلو یده چه په بمبۍ او هن
کښې زما صحت ښه شوی ؤ، خو د سمندری سفر او لارې د تکلیف په وجه بیر ته خپ
زوړ حالت ته را غلی وم ..

پاخه پاخه سر کو نه ، ځای په ځای چو کو نه ، لوی عمار تو نه ، گنی
سینما گانې او تیاترونه ئې دلیدلو او یادولو وړدي ، بازار ئې دخلکو غوند
ښایسته دي ، خیابان پهلوی خیابان سعدی خیابان فردوسی ، خیابان شا
خیابان لاله زار ، دتهران مشهور خیابانونه اووا ټونه دي .

دابن سینا کتابخانه په تهران کښې یوه لویه کتابخانه ده ، او ډ پر ښه ښ
کتابونه پکښې پراته دي .

کاخ گلستان ، دنصرالدین شاه قاچار ارگ ډ پر ښکلی او زیات شهرت لر
. داقصر نصرالدین شاه جوړ کړی ؤ او دقاچاری پاچاهانو د اوسېدو ځای
د دې قصر دموزیم په تالار کښې ډ پر تاریخي شیان موجود دي
لکه تخت نادر . تخت طاؤس ، دپطر کبیر هدیې او نور ،

په تهران کښې دعدلیې او مالیې دوزارتونو عمارتونه ډ پر باعظمته بر ښې
چه دبمبئې دځینې عمارتونو په نمونه جوړ شوي دي . درضاشاه یوه مجسمه
دگاډی دتېښن په مخکښې او بله دتوپخانې په چوك کې . له لیرې څخه
دخلکو نظرونه راکاږي - دتهران نوی ښار ټول پوخ صفا او پاك دي .

دنوي وودانیو سلسله دشمال په خوا تر «شمران» پورې رسېدلې د

په زاړه ښار کښې دشاه مسجد یو مشهور مسجد دی-چه اکثر ې جلسې اوغونډې
دلته کېږی-د ۱۳۲۹ دقوس په ۳۰' د تیلو دملی کولو غونډه هم دلته شوې وه
ه دکتور بقائی پکښې خپله مشهوره اعلامیه خپره کړې وه .
دتهران ښار تقریباً په دولس میله کښې پروت دی- په تهران کښې
ر ټلو نه او رستورانونه زښت ډیر دی د(پارك او پالاس) هو ټلونه پکښې
له درجه دی چه په یوه شپه یو اطې داوسېدو «۱۵۰» ریاله یعنې سل افغانۍ اخلی
لالازار' نادری ' سنترال منځنی هو ټلونه دی-چه په یوه چپر کټ (۵۰)
یاله باره اخلی- دتهران رستورانونه دشپې تردوو بجو پورې خلاص وی '
کثر خلك په رستورانونو کښې ډوډۍ خوری ' په ځینو رستورانو کښې
قص 'او ډانس هم کېږی .
روستائی ' ارمنی' کردی ' عربی' اروپائی 'چینی' هسپانیوی 'هندی
ر قسم ناچونه او ګډا ګانې په تهران کښې لیدل کېدی شی .
تهران هو ټلونه بې له «پالاس او پارك» څخه نورا کثر حمامونه یعنې لمباځی
ه لری اوپه دې وجه پکښې یو مسافرته ډیر تکلیف پېښېږی . بله خبره
اده چه په دې هو ټلونو کښې لکه دهند دډوډۍ او کرایې یوځای حساب
شته-دهو ټل کرایه ځانله ده اوډوډۍ ځانله حساب کتاب لری .

دپټرولو دډېرښت پهوجه په تهران کښې ګرځندې ګاډې اومو ټرو
زخت دپردې-په بازار کښې دهرد کان مخې ته دامرېکا نوې او تازه بيو
اوفورډ موټرونه ټوله ورځ دمهولاړوې- کرايې موټرونه هم خو را زيات دي
په لس ريا له يوکښې سړی دښار هرې برخې ته تلی شي. په دې وجه پکښې
بېګېړ لږې دی .

په تهران کښې دموټرو دډېروالي په وجه پياده خلك دسړك په دوا
غاړو ترلسو شلو دقيقو پورې هم دلارې دخلاصې په انتظار ولاړوي .

دوه نجونې مودسړك پهمنځ کښې ولاړې وليدې-چهدتېرېدو لارئې نه و
اولکه هوسۍ چه ددوښکارياتو ترمنځ ګيرېشي-دغسې ترورې او اريانې
ښکاريدې' په تهران کښې دلرګواوسکرو کارله نفتو څخه اخيستل کيږي
تردې چه بخارۍ هم ټولې په تېلو تودېږي-دلسو ريالو تېل ترسبا پورې د يو
بخارۍ دپاره بس کيږي په تهران کښې خوراکه باب او نور شيان ښ
قيمت دي. يووخت ډوډۍ له ۳۰ ريالو يعنې «۲۰» افغانو څخه کمه نه د
انګليسي کشمېره ګزپه «۶۰۰» رياله يعنې «۴۰۰» افغانۍ خرڅيږي
چه په دې وجه په تهران کښې دپول دارزانۍ' داجناسو دګرانۍ او بې
ګوزرانۍ شکايت ځای په ځای اوريدل کيده .

او کشالې دی- په عادی طوردهرې جملې اوخبرې په آخر کښې یو دو
سیلابه آوازرا ښکل ددوی لهجه ده . ښخوابه چه ما کله دایران مو سیق
اوربده- نوویل به مې چه دوی څومرة اوږ د یغاړي را کاږی- تردې چ
دساز خوند خراب کړي-مگر چه د دوی خبرې مې واوربدې نومی‌و من
چه دوی ملامت نه دی-ځکه چه خبرې‌ئې تولې اوږدې او په مد و نو و
نوسا ز خوبه ئې خا مخا کشالې اورا خکلی وی .

## دتهران اومشهد تر منځ

د مارچ :-۱۳
صهر په‌اوه نیمو بجو د«میهن‌تور »شر کت په‌ا‌تو کـار کښې دمشهد په‌اور سپا
شوو دایران‌سرو‌بسو نه‌له بهر نه رنـگ کړی ښکاری- مگر- دننه د چو ک
خوندئې نه‌وی -په دې سروبس کښې شل چوکۍ وې- لا کن د برې تنګ
اوونې-دېښو داوږدو لوځای پکښې‌بېخې نه ؤ- کښېناستل‌پاڅېدل- کوز پد
راختل- هرڅه په‌تکلیف و و -وایی له‌پېښې نه تېښته نشته‌په‌همد.غه سروب
کښې غرمه «سیمنان »اوماښام- شاه رود« ته چه د تهران او مشهد نیمه
و ر سېدو -د تهران د لا رې هو‌تلو نه هم بې خو ند ه ناپا ک اوتنگ دی
له تهران څخه تر مشهده په دښتو نو کښې یو کچه سر ک تللی دی

سپېره دښتونه دی، څوک چه د ایران دښتونه و ګوري نو د فراه او بکوا
دښتونه به ترې هېر شی

سیمنان څخه چه را تېر شو- نو دوا وري سپینوالی مې ستر ګې وبرېښولې زه په زړه
کښې څوره خوشحال وم چه سبز ګال خو مې دواړي مخ و نه لید، مګر خبر نه وم چه
دغه زوړ آشنا را ته په لار کښې مخی ته راوتلی دی، د تهران او مشهد سفر بې له ژمی
اوري هم ستړي کوو نکی او له کړاو نه ډک دی، او بیا چه لاسا ړه او واوري هم وی
موټرو له و رځ هم لار وو هله او د شپې ئې هم د مه و نکړه، په تنګو
چو کیو کښې د موټر چړک چړوك، شار بل خوځول لا پر ېېزده، چه د بې خو بي
د لاسه موسرو نه کندوان شول- کله چه به د خوب چپه راغله او د چو کې
ه وسپنې سره به مو تندی و جنګېد، نو خوب به له و برې و تښتېد، چه بیا به را غی
بیا به ئې هم دغه حال ؤ، غرض دا چه په همدغه شان د مار چ په څور اسم دما سپښین
ه یوه بجه تقریباً په «٢٩» ساعته کښې مشهد ته راورسېدو، چه په دې کښې
«٢٤» ساعته په مزل، او «٥» ساعته په دمه او درېدو ولګېدل .

موټروان له سور او څخه یو یو تمن «لس ریال» له کرایې نه علاوه د په خیر
سېدلو په ناوه یعنی «حق الخدمت» واخیست، په مشهد کښې هوا کل ف

دمارچ ۱۵ :

## دمشهد لیدنه کتنه

مشهد چه په رومبی ځل مو نبز و لیدنو خیال مې و کړ چه دغسې ښار به چړ
نه وي، مګر دتهران بمبیړ، دیلی او کلکتې دلیدونه چه و ا پس را غلو
مشهد راته یوه کنډواله ښکاره شوه . دمشهد هوا بېخی د کابل دهواسره
نزدې ده . په دې وخت کښې دتهران هوا له مشهد نه تو دده، په تهران کښې
ژمی په وتلو ؤ، مګر په مشهد کې لاواوره پر ته وه .

ما سپښین په دوه بجې دافغانی قونسلګرۍ سر کاتب محمدحیدرخان ناصر
چه یو ښه پښتون دی راغی او له ده سره د تفریح دپاره ووتم، د مشهد
په نوی ښار کښې تر آخره لاړو ـ خو کومه خاصه د لچسپی مو پکښې و نه لید
نکړی شوه ـ بیامو په « ګلشن کافی » کښې چای و څکله ـ د کافی وضعیت
موقعیت هر څه ښه وو ـ مګر په چو کیو کښې د آرام په ځای نا آرامی لیدل کېده
ددې کافی ټولې چوکۍ دوچولر ګویا په بله ژبه پښې لرونکی دی وی
سر کاتب وویل چه دا په ټول مشهد کښې ښه کافی دی . چو کی
اکثرې دمېلمنو په انتظار کښې خالی پر تې وې ـ بیاما ښام ته نزدې سر کاتب
په قونسلګرۍ کښې خپلې خونې ته بو تلم. دی ځا نله په یوه کوټه کی اوسی
چه له پنځو کالو راسې ورسره آشنا دی. د کوټې جغرافیائی وضعیت دو مر

مرغیو پنجرې ځوړندې وې-په دوو پنجرو کښې دجوړه مرغیو او په دو
نو رو کښې دیوې یوې مرغۍ نرۍ نرۍ آواز و نه اورېدل کېده. دښر ق
خواپه بل ګوټ کښې په یوه بله پنجره کښې یوه مرغۍ په هګیو ناسته و
اوددې کوټې دښایست دپاره ئې بچې پیدا کول . ددې مرغیو ښې زېږ بخن
اوله‌چوغکې شخه لېزې وډې وې ، دې مرغیو ته« کنیرۍ » وایی-چه ت
په یوه نرۍ آوازئې خلك دېرې پیسې ور کوی. د کوټې په‌شرقی اوجنو ب
دېوال ددوو تابلو ګانو منظره دومره راخکونکی وه-چه یوشاعر یو ادی
خوپرېږده یوبې ذوقه اوبې شعوره بنیادم به‌هم ترې‌ستر ګې بل خوا ستن
نکړی شی.

تابه‌ویل: چه‌ددې تابلو ګانورسم ګراو کښېده ګرد خپل فن تول مهار
خرخ کړی ؤ-دا تابلو ګانې په‌اصفهان کښې د کوم ماهر فن کار اوانځوز ګ
په ساحرانه ګوتور سم شوې وې او تعجب دادی چه‌دا ټول رسم‌اوانځو
دټوټې دپاسه وېستل شوی ؤ؛ مادکاغذ دپاسه د غسې صفا او ښکلی نقش
نه‌ؤلیدلی، چه‌دټوټې دپاسه‌مې‌واید-نودانسان دمرموز واو پټو کما لو
یوه بله‌پرده راته ښکاره شوه .

دمولانا ابوالکلام خبره‌چه‌حسن هرځای حسن دی-په آواز کښې وی

پهغاړهدفطرت توله طبیعي منظره په پوره مهارت ترډي چهداوبو په غا ړ
واړه واړه بوټي اودوښو ډانې هم درسام له نظرڅخه نه وې پاتې شوې- په دغ
رنګینې ګښې یوه ښکلې ښاپېرۍ چه دغټو غټو سترګو په ښو ئې د ا
مرغلرې ځوړندې وې او کودې کودې خوړې وړې زلفې ئې په اوږو اخوړې و
په ویاله ګښې دلمبا په حال لیدل کېده تا به وې چه داوبو په منځ ګښې دبلو ر
یو غرېږ ګېږي اودسپین بریښ په رڼا ګښې ئې او به سپین زر شر مو ي
درنګینې ښاسیته لوپټې یو سر داوږې دپاسه او بل پلو ئې په یوه سینه او ږا
ترزنګنوپورې ځوړند بریښېده داپه ځنګ او اړخ په داسې شان ولاړه و
چه دېردې ځای نه پټ او دسینې اننګوړې' ددودولاندې دبلورو غو ندي
اوږدې مرمري ایچی اوسپین مړوندطبیعي ښایست او جمال په رڼا ګښ
ځلاند او پټ کېدو نکې ښکار پدل. بل خواته دباغ په بل سر ـي دویالې خو ا
نژدې دیو ډېر مست او په دوو پښوولاړ اس دپاسه یو ښکلی پی مخی ځلمی
په داسې شان رسم شوی ؤ چه بس دااوس دباغ خواته را رسېدلې دی اوددغ
پېغلې په ننداره ځای په ځای بې خوده ولاړ دی' یواځې دی نه بلکه دده داس دمستې
ګې هم سستې شوی وې او دحسن دسنګر په لوري یو قدم هم نور مخکښې نشی اخیستی
منظره نه وه قیامت ؤ' تا بلو نه وه آپت ؤ. دنقاشۍ او ګښېدو ګر ي د سح

گورئی زه به ئې درته‌ووایم خوپه زړه‌ونو مو گوتی کېږدی. چه تو
ونه‌وهی. اوله گوگل څخه ونه وځی ـ داتابلو دشیرین اوخسرو پرویز
...!هغه شیرین چه فرهاد ورپسې غرونه سوری کول او هغه شیرین چه
خسرو پرویز ورپسې دشبدیز په شان ملکونه دپښولاندې کول. بله منظر
هم‌دغسې‌وه؛دونو په‌یوشین ځنګل کښی یوه‌پېغله دویالې د شګو په غاړ
کښ ه ولاړه ښکاری. اوسپین اندامونه ئې دنمر دپلوشوسره دآینه برق
مخابره کوی.ماسر کاتب ته وویل :چه دا کوته خو دیو شاعر اویوعا
کوته ده.ددغسې ښکلو منظروسره ښه نه شعر و نه اوښه ښه آوازونه‌ښا
ده وویل :زه په خوله څه‌نه وایم زماهرڅه په زړه کښی دی.
ماوویل : هوته په چپه خوله شاعراوپه پټه خوله و یاند ئې ـ شاعر
ذوق په تا کښی دغسې پټ دی. لکه بوی چه د گل په پاڼه کښی یو ا
له‌سترگوڅخه پټ وی.

## د گلشن تیاتر

دسر کاتب په‌خوښه‌اوه‌نیمې بجې د« گلشن تیاتر »ته‌لاړو.د« دهکد ۀ عش
په نامه یو ډرام عملی کېده. داتیاتر کوچنی اوبی کاره ؤ. وچی کل

رتباط او تسلسل پوره نهٔ-پهیوه نیمځای کې پهیوهوړهموضوع بې ازومهډ پروخ
پر پده-غرض داچه دآرت اوفن په لحاظ ابتدائی ۀ-صرف کومید ی برخه ئې
یاته وهچه په دې وجه ئې دخلکو دخنداذخیره زرخلاصوله- یو څو تنو
پیغلوهم پکښې پارټو نه اوبول-اکثری خبرې په منظوم صورت وې -چاچه
هند موسیقی اوناچ لیدلی وی-دهغه سو دا و تسل په بل ځای
چرته کیږی. ددېځای دپیغلو پهموسیقی او رقص کښې کوم موثر
ودلچسپشی په نظررانغی-نازواداېلکهاکثرحرکات ئې غیر طبعی ښکاربدل
کهځههم دایران دخوبانواوښکلوصفتونه ډېرشوی دی-او کیږی-مگر هغه به
غالباً د حسن اوښائست وی-او دالازمه نهدهچه هرښکلی تهدې خدای دحسن
څر گندولو کمالهم ورکړیوی-پههند کښې موسیقی اورقص دیومکتب
ه لمن کښې روزل شوی اوپالل شوی دی-اوهلته دهمېشه دپاره دد ې لطیف
ن دپاره درسخانې موجودې وی-مگرپهایران کښې ښایی دا کار پههغه صورت
هوی روزل شوی-نوځکه دهغهځای اوددې ځای دمو سیقی اورقص پهفن
کاری، جذابی او سحر کاری کښې څه فرق لیدل کیږی-اوهغه استادا
ودا هو سانه معلومیږی.

مشهددایران پهشمال کښې زیات مشهوراوزوړ ښاراودمشهد دو لا یت
ر کزدی-دمشهد دنوی ښارمشهورخیابانونهدادی-خیابان، پهلوی ، خیابان

دامام‌رضا مزار یوډېر لوی په‌قدیمی ډول‌باندی جوړ گومبزی عمارت‌لر
د کاشی کاری‌دصنعت کمال‌پکښی ښودل شوی‌دی-دامام‌رضا دعاید ا ت
اوانتظام دپاره دحکومت له‌خوانه یوځانله‌اداره‌مقرر‌شوی‌ده- اوپه لکو
عایدات لری.
دامام رضادمزار قبلې طرف ته‌دگوهر شاد-لوی جامع‌مسجد لیدل کیږ
دډېروجگو جگو منارو‌څخه-ئې هروخت دآذان آوازپه‌ښار کښې خپر یږ
دمشهد‌مشهور‌هوټلونه دادی-مهمانخانهٔ‌قدس‘مهمانخانهٔ باختر‘مهمان خا
طوس‌اونور په‌مشهد کښې له‌موټرو څخه گاډی‌ډېر‌دي-مگر ټولې ځلو
اربه‌ئې دی-دوه‌اسونه‌ئې‌را کاږی-اودوه‌یادرې‌تنه‌پکښی کښېني.په‌مشهد
هم ښځې لوڅ مخ په بازار و نو کښې گرځی، مگر سره‌د دې هم دتهر ا
اودې‌ځای ترمنځ ډېر فرق لیدل کیږی-هغه‌لکه یواروپائې‌ښاراودایو شر
ښارمعلومیږی. په‌مشهد کښې ترهرڅه سوالگر اوغریب زیات‌دی‘په‌ایر
کښې دچاینك ضرورت نشته‘چای‌عموماً په‌پیالو کښې ور کوی‘«مرسی
دتشکرپه ځای په‌ایران کښې زیات استعمالیږی-چه‌اصلایوه‌فرا نسو
کلمه‌ده-دهرې‌خبرې په‌مقابل کښې په‌ډېره نرمه پسته‌لهجه«چشم» دد و
مخصوص صفت‌دی.

پەدرې بجې موږ «خاور تور» دشر کت ګاراج تەخپل بکس ورساوە-دخو دقیق
پەځای موـدوەساعتە انتظاروویست-دموټرخو اوشاعلاقەدمشهد سو الـکر
راګېرە کړې وە- نزدې پرپنځەبجې پەموټر کښې حر کت پیدا شو - مګـ
لە٢٩ تنەسورلو اولاندې باندې سامان اومال څخه ترخولی پورې ډکـشـو
داچەمې ولید دتهران پەموټرمې شکروویست- پەډېر تکلیف یەیوە تنګـ
و کمە کې غونج مونج کښېناستم-موټردجنوبی فلکې څخەتاوشو-اودیوسف آبا
پەلورئې دتلوهارن ور کړ-موټردمشهدنە څومیلەبهردیوې تانې سرە ودر
پولیس دتفتیش دپارەاویو بل ملاډولە سړی دسوال دپارەموټرتە راو ختل
ددې ځای درسم ترخلاصېدو وروسته موټرخپلەلار ونیولە-دسړکـخوا و ش
پتو کې زمیندارو کولبې کولې-مګر دکولبې جغ دخرو او یابـو ګا ن
پەاوږو پروتۀ-ماسخوتن «فریمان» تەورسېدو.
دلتە دمە کول اوچای ډوډۍ خوړل ضروری خبرەوە-بیامو حر کتو ک
اونزدې دشپې دولس بجې لەمشهدنە پە«٦» ساعتە کښې د«تربت جا م
پەیوەسرای کښې موټرودرېد.-نیمەشپەوە-دخملاستو ځای نەؤ- هر چا خپ
سرپناه کول غوښتل زەهم یوې کوټې تە ننوتم دمسافرو دخرهار لەلا س
پکښې یوساعت کښېناستل هم مشکل وو-مګرچارە څەوە؟

گیځ په‌لس بجې له تربت ځخه وخوځېدو-او دولس بجې دیوسف آباد
په گمرک ورننوتو .




دمارچ ۱۸ :

## یوسف آباد

مونږ په لاره کښې ځومره خوشحاله وو- چه نن به داسلام [illegible] پوستې
وته راغلی‌وی- اوبې له ځنډه نه به خپلې خاورې ته ورسېږو-
[illegible]گردوروسته‌په باره کښې‌دانسان اتکلونه همېشه‌سم نه‌خېژی . په یوسف
آباد کښې‌معلومه شوه چه‌دبارانو نواولارې‌دخرابی‌په‌وجه-له‌دوو هفتوځخه
[illegible]سلام کلا ځخه دپوستې موټرونه دی راغلی. سره ددې هم یونیم سړی
موټرو دراتلو زېری راکاوه ، دگمرك مامورین په خوراك ځكاك
[illegible] دغرمې په خوب مصروف‌وو-اومونږد گمرك‌په سرای کې د ننه نظر بند
[illegible]ست وو ، ولې‌چه پیره دار دبهر وتلو اجازه‌نه‌راکوله- ویل ئې‌چه رئیس
[illegible]تاسې تفتیش نه‌دی کړی- تاسې له گمرك ځخه بهر نشیء وتلای .
[illegible]ما خو دومره‌پروا نه‌وه- لکن زمونږ یور ځور ملگری- دهرات
[illegible]جی عبدالله خان‌جمشیدی‌دشورنی‌وکیل چه په مشهد کښې راسره ملگری
[illegible]ری‌ؤ- ډېر په کړاو او تکلیف ؤ . نزدې درې ساعته پس کوم مامور

...ا کړم۔مگر تراسلام کلاپورې دسړی په سر «۲۰۰» ریاله را کړی
... په ډېرو جګړو په «۱۵۰» ریاله راضی شو۔ دسرای خاوند او یو بل
...ی میرزا مهدی د پر فعا لیت کاوه۔ زمونږ له څلورو تنو څخه ئې
...نږ سوه ریاله واخیستل اوځه ئې دسودا ګرو مالونه پیدا کړل۔ غرض
...چه یوه غوړه نمری ور برابره شوه۔ ګیڼ څه نورې سورایۍ هم پیدا
...ي۔له هغوی نه ئې سړی سر «٤۰» ریاله واخیستل۔ مونږ خپل سامان
... ګمرك ته یووړ۔ د ګمرك رئیس نن وختی را پیدا شوی ؤ۔ ما ته ئې
...یل۔تا ته به په دې دوو شپو کې تکلیف پېښ شوی وی۔ ما وو یل هو!
...بوریت ؤ۔ څه به مو کړی وای. زما د بکس نه پرته نور ټول سامان ئې
...اوه۔ دساعت ستن لسو بجو ته نژدې شوې وه۔ زمونږ حوصله هم تنګه شوې وه۔
...ر راباندې په یوسف آباد کښې یوه دقیقه دیوه کال هومره اوږده
...کا ر بده. موټروان ته مو وویل چه ولې نه ځې؟ده وویل چه لا اجازه نشته۔
... کا رلا پاتې دی۔ چه د کار لټون مو وکړ معلومه شوه چه د کرا یې
... پیسو کی نور هم ځینې کسان شریك او دو بش په کار سره لګیا دی،
... خیر اه د ډېرو لانجو څخه وروسته۔ موټر اه یوسف آباد نه وو وت.
...ی ته له اسلام کلا څخه افغانی موټر راغی۔ کمیسا ر هم پکښې ؤ۔

موټر کښې لاړ شو ـ مګر سرای والا ځان له ځمکې ځمکې ويشته ـ چه خامخا به
زما په موټر ې ځی ء .

قصه داوه چه د کرايې پيسې دوخته وېسل شوې و ې ـ نو د هغو بېرته
اخيستل هم څه آسانه خبره نه وه . له نا کامه په دغه موټر کښې د اسلام کلا
په لو ر و خوځېدو . د د ښت په منځ کښې سر حد ی څلی ښکاره شو ل
يو خوامې په سرحدی پوله ستر ګې و لګې . بل خوامې چه ساعت ته وکتل
دحوت د ۲۹ او دمارچ د ۲۰ تاريخ دماسپښين دوه بجې و ې ـ چه په
فغانی خاوره کښې راداخل شو ـ او بې اختياره مې له خو لې څخه شکر
لحمدالله ووتل ـ په دې وخت کښې يوه مخصوصه خوشحالی محسوسه شو . ـ
دزړه تنګی په پراخۍ بدله شوه ـ او يو قسم قلبی ډاډ مو نده شوه ـ او له هغه
ر وحی عذاب نه چه په پردو ملکو نو کښې پرې سرې اخته وی ـ خلاص شوو .
ور بجې اسلام کلا ته راو رسېدو او نزدې درې ميا شتې اودرې ورځې پس مو
ه اسلام کلا با ندې ستر ګې روښا نه شوې ـ شپه مو په ډېر آرام د اسلام کلا په هوټل
کښې تېره کړه ـ او سهر دهرات په لور وخوځېدو . د ۱۳۳۰ د نور و ز او له
رځ په هرات کښې تېره شوه . دهرات او قندهار تر منځ مو په لاره کې
ه تکليف وليد ـ ليکن بيا هم درې شپې په لار قندهار ته ـ او له قندهار
دحمل په «۹» کابل ته راو رسېدم ـ بس قصه خلاصه شوه نور نو

